د کتاب پېژندنه:

د کتاب نوم د ښاپېرۍ ورغوی
ويناوال پیر محمد کاروان
خپرندوی دانش خپرندویه ټولنه
د خپرېدو نېټه تله ۱۳۹۷ هجري لمریز کال
د چاپ شمیر ۱۰۰۰ ټوکه
د پشتۍ انځور استاد محمد خسن پاوند
د عنوان لیک استاد قمرالدین چشتي
کمپوز او ډیزاین محمد ابراهیم امیري

**یادونه**

له ډیر ګران ورور محمد ابراهیم امیري نه یوه دنیا مننه چې د ښاپېرۍ ورغوي ته يې کتابي بڼه ورکړه.

د انټير نيټ په مخ اوډ نکی : سمسور حبيبي

# ښاپيرۍ زما همزولې

نه پوهېږم چې څومره شاعر يم او څومره نه. زه چې اوس د خپل تير ژوند په خاص ډول د ماشومتوب شېبې را يادوم ، نو خپل ځان له اوس نه زيات په ماشومتوب کې راته ښه شاعر وبرېښي. همدا اوس هم د او سنيو شېبو ، تراژيديو ، خوښيو او ښکلاوو د ښې انځورونې لپاره د خپل تير ژوند په تيره بيا د ماشومتوب رنگينې شېبې په پور را اخلم او د خپل شعر د کورگي سندريز ديوالونه ترې جوړوم. په ماشومتوب کې چې د تورو او کلماتو خاپيرۍ مې په حکم کې نه وې ، نو د ماشوم شاعرانه کيفيت خو مې په حکم کې و . د ښا پيريانو کيسې مې دومره ريښتيا گڼلې چې د شپې به مې په خوبونو ليدې. په خپل ماشوم ذهن او خيال کې به مې يوه ښاپيرۍ جوړوله او ما به وې چې د اوسپنې څپلې به ورپسې زړوم. په ځنگل کې يو ناست ملنگ به اسم اعظم را ښيې ، دعا به راته کوي او بيا به د ښاپيريو جامې په لاس راځي.

په ماشومتوب کې له فطرت او تخيل سره له تصنع او عقل نه پاکه مينه کيږي او همدا مينه د سړي راتلونکې هم جوړوي.
کورنۍ چاپيريال هم د ماشوم په راتلونکې اغيز لري. که څه هم نه مې پلار شاعر و او نه مې مور شاعره وه ، خو بيا هم مور او پلار مې ماته ډير شاعرانه کيښتونه را ښښلي دي.
زما د مور د ماشومتوب او ځوانۍ ټول ژوند په غمونو او تراژيديو کې تير وشی دی. تراژيدي مې له مور نه په ميراث وړې ده او تر ننه د تراژيدي هنر سره مينه لرم. تراژيدي موسيقي مې خوښيږي، تراژيدي فلمونه ، افسانې ناولونه او شعرونه مې خوښيږي. زما د مور څلور ورونه يو په بل پسې مړ شوي وو . کله چې زه لږ غټې شوم ، نو مور به مې د نورو افسانو تر څنگه د خپلو ورونو د مرگونو کيسې راته کولې. له کيسې وروسته به مې مور وژړل ، ما به مې مور ښکلوله او زارۍ به مې ورته کولې چې بس دی ، مورې مه ژاړه. کله کله به مور د خپلوورونو په ياد يوه نيمه لنډۍ په غلي اواز ويله. د مور اواز به پر ما خوږ لگيده او ما ته به يې ژړا راوسته . ما مخکې وويل چې زه په ماشومتوب کې په تورو او کلماتو لاسبرى نه وم ، کنه کنه ډير کيفتونه به مې د تورو او او کلماتو په زور شاعرانه کړې وای. يوه خاطره درته ليکم چې شعر ته ډيره ورته ده:
_مور مې ددويم پوړ په کوټه کې را ته ټال جوړ کړی و ، زه به په ټال کې زنگيدم. د دويم پوړ د کوټې له کړکۍ نه به مې مخامخ غرونو ته کتل. مخامخ غرونه به هم زنگيدل . زه نه پوهيدم چې دا غورنه څنگه زانگي ؟
کله به چې زه له ټال نه را کوز شوم. دوی به هم ځای پر ځای و دريدل. يوه ورځ نرۍ نرۍ باران وريدلی و . زه په ټل کې زنگيدم. نا څاپا مې مخامخ غرونو ته پام شو . د غرونو پر لمن د بوډۍ ټال ( شنه زرغونه ) غوړيدلی و . غرونه زنگيدل. ما له ځانه سره وويل چې دا به د غرورنو ټال وي او غرونه به په دې ټال کې زانگي. پر غرونو را خوره شنه زرغونه مې د غرونو ټال باله .
په همدې ډول له عجيبو شاعرانه کيفتونو سرا را لويدم. پلار مې ډير ديندار او امانتداره سړی دی. ډير وخت به په نيمه شپه کې د تهجد لمانځه ته پاڅيده . کله کله به يې زه هم له ځان سره پاڅولم. د نيمې شپې

چوپټیا او د ستورو ځلا به را باندې ډېره ښه لګیده . کله کله به یې په اسمان کې هغه نژدې شوي ستوري را وښودل . یو ستوری به غټ تک سپین و . پلار به مې ویل چې دا لیلا ده. بل ستوری به د سپین غټ ستوري نه لږ وړوکی او سوربخون رنګ یې و . پلار به مې ویل چې دا مجنون دی. دوی دواړه یو پر بل مین وو او دواړه د خدای په قدرتونو اسمان ته ختلي دي . دوي په کال کې یو ځل سره غیږې ورکوي او که چا غیږ په غیږ یو ځای سره ولیدل. چې هر سوال یې له خدای پاک نه وکړ ، سوال یې قبلوي. ما به هم په زړه کې ویل چې ښه که غیږ په غیږ یې ووینم. نو کوم سوال به له خدایه کوم ؟ سوال به مې نه خوښیده. په دې سوچونو کې به خوب وړی وم.پلار به مې د شاتو له مچیو سره ډېره مینه لرله. کله به چې ژمی تیر شو. زموږ کډې به د غرونو باندو ته تلې . زموږ غرونه د ثیړیو په ګڼو ځنګلونو پټ دي. ځیني د نښترو ځنګلونه هم لري. پلار به مې د ځنګل په لمن کې د اوبو پر غاړه د شاتو مچۍ څارلې. د اوبو غاړې ته به یوه یوه مچۍ راتله او به به یې په خوله کې اخیستې او د ثیړیو په ځنګل به ور ننوته . پلار به مې هغه ځای معلوم کړ. بیا به د ثیړیو په ځنګل کې پسې ګرځیدو. کله نا کله به مو ثیړیو په یوه لویه ونه کې د شاتو د مچیو کور پیدا کړ . مچۍ به د لمر د وړانګو په غیږ کې لکه ګرځندې سپرغۍ د لویې ونې سوري ته ننوتې او ځیني به ترې راوتې. دا انځور اوس هم زما په ذهن کې ژوندی دی او اوس هم دا ښکلا په لفظونو کې نه شم نغښتلای. پلار به مې د ثیړۍ لویه ونه د شاتو پسې سوری کړه . تختې تختې شات به پکې وو . د شاتو د مچیو په ټوپکي کې به یې ګوتې وهلې یوې نیمې به پر ګوتو او لاسونو و چیچه ، خو د پلار به مې هیڅ چرت هم نه خرابیده. کله به یې چې پر مخ او یا د سترګو سره نژدې وچیچه. نو ما ته به یې ویل چې دا لشې یې را وباسه. ما به لشې ترې را وویستې. کله به چې زه د شاتو مچیو وچیچلم ، نو ما به ژړل. پلار به مې راته ویل چې ستنه یې درته ولګوله. دا د هر مرض دارو دي.پلار به مې د مچیو په مینځ کې یوه اوږده زرینه مچۍ پیدا کړه ما ته به یې راکړه ویل به یې چې ورو ورو یې په ګوتو کې ونیسه دا ملېکه ده او چیچل نه کوي. ما به ملېکه ورو په ګوتو کې ونیوه . ثومره پسته وه . زړه به مې یو ډول پرې خوږ شو . پلار به مې د واسکټ له جیبه کوچنۍ بیاتي را واخیسته او د ملېکې وزرونه به یې یرې کړل. بیا به یې د شاتو کندو ته واچوله. د شاتو د کندو سر به یې خلاص پرېښود . مچیو به د شاتو د کندو پر سر ګرځنی کول او ډلې ډلې به د کندو ګیډې ته ورننوتې. په یوه شېبه کې ټولې مچۍ د شاتو کندو ته ننوتې. د شاتو د کندو سر به یې وتاړه. د مچۍ له کور نه به یې د شاتو تختې را پرې کړې. ما ته به یې یوه کوچنۍ تخته شات را کړل. چې دوه درې ټوټې به مې وخوړل . موړ به یې کړم. یوه شیبه وروسته به شاتو تږی کړم. د ځنګل په لمنه کې به پر یخه چینه ځملاستم او یخې اوبه به مې وچښلې. پلار به مې له شاتو دیګی ډک کړ او له ځنګله به رووان شوو. پر لاره به خوشحاله خوشحاله را تلو . زما مخ به د شاتو د مچیو له لشو نه پړسیدلی و ، سترکې به مې تنګې شوې وې. پلار به مې مخ ته هنداره راته ونیوه . ما به د ځان پورې خندل. د هر څه په باره کې به مې له پلاره پوښتنې کولې. له پلاره به مې پوښتنه وکړه چې د شاتو مچۍ شات څنګه جوړوي ؟ پلار به مې راته وویل : مچۍ ګلان په څانګو کې راوړي. دننه په صندوق یا کندو کې یې پانې پانې ږدي. د ګلونو د پاڼو د پاسه ملکه ورو ورو ګرځي. له کومو ګلپاڼو نه چې ملکه تیریږي ، هغه ګلپاڼې په شاتو بدلیږي.
زموږ د کور په هره کوټه کې دوه یا درې د شاتو صندوقونه چې موږ یې ټمبکي بولو وو . زموږ کورته به له سهاره تر مازدیګره مچیو په وزرونو کې رنګا رنګ ګلان راوړل. ګلپاڼې په څانګونو کې مچۍ ډیرې ښکلې

ښکاري. زه د دويم پوړ په کوټه کې ويده کيدم.، او زما کټ د شاتو د مچيو له ټمبکي سره جوخت ايښی و. د شپې به مې له کړکۍ نه د ستورو ډک اسمان کوت. د ليلا او مجنون ستوري به مې کتل چې څومره سره نژدې شوي دي؟ بيا به مې د شاتو د مچيو زمزمو ته غوږ کيښود.

کله کله به مې د ټمبکي تخته ورو په څپېړه ووهله. د شاتو د مچيو زوږ او زمزمې به لا پسې ډيرې شوې. ما به زړه کې ويل چې اوس به په ډيرو ګلپاڼو له پاسه ملښکه تيره شوې وي او اوس به ډيرې ګلپاڼې په شاتو اوښتې وې. په زړه کې به مې را وګرځيدل، کاشکي زه د شاتو ملښکه وای چې ګلپاڼې مې په شاتو بدلولای.

پلار مې د شاتو د مچيو په باره کې دا هم راته ويلي وو چې دوی ډيرې اصيلې دي. په کوم کور کې چې بې دينې او بې اتفاقي راشي او يا ظالم پاچا پر وطن واکمن شي، نو دوی له هغه کوره ځنګل ته ځي. د شاتو مچيو د ښکلي پيغمبر(ص) د ژړا تاب نه درلود. د پيغمبر (ص) اوښکې يې وڅښښلې او لوی خدای(ج) د شاتو جوړول پرې ولوروله. پلار مې ويلي وو چې د شاتو د مچيو د ساتلو لپاره بايد په زړونو کې پاکي او تقدس وساتو. دا خبرې مې له پلاره اوريدې او زما په ياد کې پاتې کيدې؟ زما د ژوند شپې لکه ګلپاڼې په غيږ کې مچۍ تيريدې. او اوس نو زه زلموټی شوی وم او ورو ورو د بلوغ درشل ته ور نږدې کيدم. او از مې لږ ډډ شوی و. خو لا تر اوسه مې هم هغه ډول خوبونه نه وو ليدلي چې د بلوغ په باب مې په منيه المصلی کې لوستي وو. يوه ورځ مې پلار د مچيو د ټمبکې (کندو) تخته خلاصه کړه. د شاتو د سپينو تختو د پاسه تورې مچۍ ګرځيدې. په يوه لويه سپينه تخته کې دوې غوټې وې. پلار مې ويل په دې هره غوټه کې يوه نوې ملښکه اوسيږي. که چيرې دا غوټې داسې پاتې شي په دې کور کې به دوې نورې ملښکې هم پيدا شي او بيا به د دې کندو نظام خراب کړي. نوې را پيدا شوې ملښکې به يو يو ټولی مچۍ له ځانه سره وباسي او دا کندو به کمزوری شي. پلار مې چاړه را واخيسته. په داسې احتياط يې غوټې غوڅې کړې چې په غوټه کې د ملښکې چينجی زخمي نه شي. پلار مې د کندو له تختې نه را تو يه شوي خاوره لمده کړه. لمدې خاورې خوږ بوی وکړ. پر ما د شاتو بوی او د لمدې خټې بوی ډير خوږ لګيده. پلار مې د کندو پسې تخته بنده کړه. د تختې پر درزونو يې لمده خاوره وموښله.

يوه اونۍ وروسته د همدې ټمبکې له سورې ګڼې ګڼې مچۍ راوځي او په هوا کې ګرځني کوي. له ټمبکې نه يو لوی ټولی مچۍ راووتې. مچۍ په هوا کې تاويدې. غوښتل يې چې د هغه لرې ځنګله په لوري لاړې شي خو پلار مې د هغوی مخه ونيوه. دوړو شګو ګوزارونه يې پرې وکړل.

مچۍ يې زمونږ له کور سره نژدې د توت ونې ته وګرځولې. مچيو د توت په يوې هسکې څانګې پورې ټوپکی جوړ کړ. يوه مچۍ د بلې مچې پورې نښتې وه. د لمر شغلې پرې لګيدلې او دوی وزرې رپولې. ډيرې ښکلې بريښيدلې. کله به باد ټوپکی وښوراوه. ما وی چې اوس به د ماشومانو د شګو د کوټنۍ غوندې د مچيو دا کور هم ړنګ شي. خو نه پوهيږم چې ولې نه ړنګيده. پلار مې له وچ او تش کدو نه جوړ شوی د مچيو د را ايساريدلو لوښی د ځان سره توت ته وخيژاوه. زه هم توت ته پاس ور وختم. پلار مې د ډيرو مچيو په منځ کې ملښکه لټوله. تر لږې شيبې لټون وروسته يې د شاتو ملښکه پيدا کړه. ورو ورو په ګوتو کې ونيوه. ما ته يې وويل چې له جيبه مې بياتې دروباسه. ما يې له جيبه بياتې راوايسته او د ملښکې وزرونه مې پرې کړل. پلار مې ملښکه له کدو نه جوړ شوي تش لوښي ته واچوله . بيا يې ورو ورو په لپو لپو مچۍ تش کدو ته پسې ور

واچولي. د مچیو ډک لوښی یې له ځان سره را کوز کړ. د نوې ملېکې دا لوی ټولی مچۍ یې په یوه بله تشه تومبکه کې سمبال کړې. څو تختې شات یې هم ورته کیښودل. چې څو دوې خپل شات جوړوي. په دې شاتو به څو شپې ور تیرې کړې. ما مې له پلاره پوښتنه وکړه چې تا خو څو ورځې وړاندې په هغه ټومبکه کې د ملېکې دوې غوټې غوځې کړې، نو دا دریېمه ملېکه له کومه را پیدا شوه ؟ پلار مې په خندا کې راته وویل چې: دا ملېکه ما پرېښې وه. ځکه چې هغه ټمبکه ډېره زوروه وه ما وې چې بله ټمکه هم ترې جوړېدای شي. په دې لا دوې ورځې پوره نه وې تیرې . هماغې اولنۍ ټومبکې بیا شورش وکړ. یو کوچنی ټولی مچۍ ترې را بیلې شوې او نژدې دیوال پورې پنډې شوې. پلار مې ملېکه پکې ونیوه. دا ځل یې وزر پرې لنډ نه کړل . ماته یې راکړه او راته یې وویل چې په ورغوي کې یې ورو ، ونیسه چې درنه مړه نه شي. ځکه چې د ملېکې مرګ د یوې پاچاهۍ مرګ دی. ما ملېکه په ورغوي کې ورو ونیوه. زما په ورغوي کې یې ورو وزرونه رپول. د وزر د رپولو سره یې ان زما زړه تخناوه. پلار مې راته وویل چې دا ملېکه یوسه او د غنمو په شنه کرونده کې یې خوشې کړه. زما په زړه کې یوې پوښتنې غځونې کولې. پلار مې نور څه هم راته ویل. خو ما نورو ویلو ته پرې نه ښود او ترې و مې پوښتل: پلاره تا هغه ځل ویل چې هغه بله ملېکه ما پرېښې وه چې نوی کور جوړ کړي. نو دا ملېکه ولې نوي کور جوړولو ته نه پرېږدې ؟ پلار مې مسکی شو . ویې ویل چې ته څومره ډیرې پوښتنې کوې. بیا یې په ځواب کې راته وویل: ځکه چې یو خو دې ملېکې ډیر کم شمیر مچۍ له ځانه سره ملګري کړې دي. یعنې یو پاچا باید ډیر رعیت ولري. او ددې ملېکې رعیت ډیر کم دی. بله دا چې هغه پخوانۍ ټمکه کمزورې کیږي . ددې ملېکې غوټه ما نه وه لیدلې. کله کله د ملېکې غوټه په پټ ځای کې وي. له سرې نه پاتې شي.زما د پوښتنې ځواب وشو . اوس نو زه په خوشحالی له کوره را ووتم. ماته ځان ډیر غټ برېښیده.ځکه له ما سره د مچیو پاچا ملګری شوی و . زه د غنمو تکې شنې کروندې ته ورسیدم.په یبلو پښو په تکه شنه کرونده ورګډ شوم. شنه او تنکي غنم زما په چاودو او یبلو پښو زخمي شول او خوږ بوی یې په هوا کې خپور شو . دا بوی هم د شاتو او لمدو خاورو په څیر پر ما خوږ ولګید . ورو ورو مې ورغوی پرانیست. اوږده زرینه او وریښمینه ملېکه مې په ورغوي ګرځیده. ورزونه یې هم جوړ وو.خو خدای زده چې ولې نه الوته.زما ډیر زړه پرې وخوږیده.ورغوي ته مې ورو پوکی ور وکړ او په پوکي سره مې د شنو غنمو غیږې ته والوزوله . کور ته په خوشحالۍ راستون شوم.بیا مې له پلاره پوښتنه وکړه چې ولې دې ملېکه له کوره شنې کروندې ته را باندې یوړه ؟ پلار مې بیا په مسکا کې راته وویل: ځکه چې له کوره او نورو ټمبکو لرې وې. که دلته نژدې مو ازاده کړې وای،بیا به کومې ټمبکې ته ننوتلې وای او یوه جوړه پاچهي به یې خرابه کړې وای. بله دا چې د ملېکې مرګ لویه ګناه ده. بس د پاچا مرګ دی.ما وې چې ملېکه ډیره تنکۍ وې په شنو او تنکیو غنمو کې به بل سپیره ځای نه خوشحاله وي او تر ټولو لویه ارزو مې دا وه چې ګوندې د مچیو یو داسې لښکر پرې راشي چې ملېکه یې مړه وي او یا یې ملېکه نه وې ، نو دا به یې ملېکه شي او ورانه پاچهي به پرې جوړه شي.
زه اوس هم داسې انګیرم ، چې زما د شعرونو او سندرو لفظونه هغه مچۍ دي چې د ښایست او شعر په شنه کرونده کې یې زرینه ملېکه ورکه کړې ده. زه تل ددې زرینې ملېکې په لټون کې لالهانده ګرځم زما همزولې ښاپیرۍ راته ویلي دې چې دا ملېکه ما لیدلې ده ما هم د خپل خیال او خپل شعر د ښاپیرۍ لمن نیولې ده. د خیال او ښکلا په ډېرو جزیرو یې وګرځولم، خو لا مې موندلې نه ده. تر هرې پلټنې وروسته ښاپیرۍ کټ کټ

وخاندي او د يو نوي پړاو د پلټنې بلنه راکوي. کله کله مې شک پيدا شي چې هسې نه ملېکه زما د همزولې ښاپيرۍ په ورغوي کې وي . که خدای کول سبا به د ښاپيرۍ ورغوی پرانزم. ګوندې زرينه ملېکه په لاس راشي او د سندرو يوه کوچنوټې پاچهي راته جوړه کړې.

په مـيـنـه

کـــاروان

# شاعر ته لیک د ځنګل

سلام سلام ګرانه کاروانه سلام

وایه چې هېر دې یم کنه ملګریه؟!

زما د سویولو غړنو شیبو

سترېه ستومانه او ښېښه ملګریه!

*　*　*

ظالمه نه رادرومې مرم درپسې

د سور کې او ښ د ګونګرو شرنګ دې اورم

ها چې اهد ء دې ؤشپونګې شهید ته

هاغه غزل په وینو رنګ دې اورم

*　*　*

نن سبا مستې ترانې نه لیکې

منمه ستا د قلم نوکه ما ته

ستا د شاعر زړګې په شنه ستوري کې

د سپین هلال د تورې څوک ما ته

*　*　*

چې ستا د چاو دو پښو په وینو سره وو

نن مې شمال هغه سرګړي ښکل کړل

ستا د شرابو شیشې تشې مه شه

راشه سو ما مې درته واړه ګل کړل

* * *

راځي د شاتو ګلوزرې مچۍ

دانه دانه دي غزلتوري ګرځي

ستا د مسرو پنجرې یې خچې پچې

د غره مارغان شي په هر اوري ګرځي

* * *

درته کافرې تذانې لرمه

راشه یو ځویې مسلمانې خوکړه

خیر دی یو څو به ملکې شي درته

ځینې یې وینځې غلامانې خو کړه

* * *

منمه نن سبا تش لاسی یې ډیر

له خیالي لاس دې د شعر کب ښوییږي

لا دې په زړه کې تنده نه ده راشنه

چې دې له شونډو جام درب ښوییږي

* * *

سرپه ځنګون چې کړم په خوب دې وینم

د ناصر باغ په هدیره کې ګرځې

لکه غاټول غوندې راټول غوندې یې

د زړه د داغ په هدیره کې ګرځې

* * *

زه هم خبر شوم ځورولی یې چا

کره کتونکو درته کم کتلي

د شاعر زړه ګلاب دې مړاوې مه شه

ما دې د سرو اوښکو شبنم کتلي

* * *

ستر ګې دې ډکې دي د زړه له رنګه

خبرې نه کوې سندرې ګورې

د شعر کوترې په پنجونه درځي

لکه سپین باز لوړې ژورې ګورې

* * *

را شه پخلا شه مروره آشنا

چوپو بلبلو ته سندرې راوړه

د پرښو پرښو پنجرې ما توه

بندي طوطيانو ته شكرې راوړه

* * *

راشه دشپې راشه شاعر به دې كړم

كه د سپوږمۍ په جام كې شومې شيبې

د قمري غوږ كې كوكو كووايه

چې راپه يادې شي ما شومې شيبې

* * *

لكه د خداى د شنه كتاب په شانې

د سپينو وړانګو په چترۍ كې راكوز

په خداى كه شين ځنګل مې وګڼې اوس

سره له ستوروېم سپوږمۍ كې راكوز

* * *

د شنو چندڼو په خوشبو كې لامبم

شپه ده په شان د شان د شنه ښامار پروت يم

نه نه پر سرمې ده سپوږمۍ ولاړه

چا پير د سپينو ستوروها ر پروت يم

* * *

پر سر د هغې تپې ستورى ولاړ

چې ستا د سره اوبښ كپرۍ ښخه ده

پر مخ يې لاس د ښترو واهمه

چې هسې نه پکې سپوږمۍ ښخه ده

* * *

سهار مې لمر لکه زرينه بيړۍ

زما د شنې غيرې په سين کې ګرځي

داد شهيد شاعر خوشحاله اروا

په ايا تونو د ياسين کې ګرځي

* * *

شډل بازان لکه ستينګر توغندي

وزرې شخې غاړې لکې نيسي

د برګ وزرو غرنو کوترو

پئتې مهينې الوتکې نيسي

* * *

ها چې روسي هوا بازنه شوو يشتی

لښکرو لاړ پر هغه لوړ ګلونه

ته وا قيام دی شهيدانو کړی

بيالو غړن دي د ګو ګړ ګلونه

* * *

ماشوم شپونکی څه په هنرور خيژي

ترېنه راوړي ګيډۍ ګيډۍ په مينه

پرو چو شونډويې ټپه ښکلوي

ناوکۍ خورته وړې ډالۍ په مينه

* * *

لمدې خيږۍ ته مې چندڼ په سلام

شنې په باران مې بنفشې

د ښکلا بريد مې څوک ټاکلی نه شي

بس يو ښايست يم بې نقشې بې نقشې

* * *

هغه د شنې غونډۍ نښتر دې په ياد ؟

چې يې ټټر کې توغندی ښخ ؤ

چې يې پروکې سور ځونډي ښخ ؤ

* * *

اوس له هغه زخم نه څانګه راشنه

چې پرې وږمه راشي لونګ خوروي

او که شمال ور سره وکړي شوخي

بيا خو د شنو بنګړيو شرنګ خوروي

* * *

د شپې پردې څانګه بلبله کيني

چې سرودونه دزبورېې په یاد

په سوي غږ سره محشر پنځوي

ته وا اسرارد کوه طورېې په یاد

*  *  *

په سپیده داغ بلالي چیغه وکړي

څه په خوږه ژبه قران وایي

ټول کاینات ورته تالۍ ووهي

په ترنم چې الرحمان وایي

*  *  *

راشه زما پرلمن لاس لګوه

چې څومره غواړې دومره مینه درکړم

مسرې یې سبل د طاووسانو واخله

چې سپین غزل ته دې شنه وینه درکړم

*  *  *

که حماسه که دې جلال وي په کار

دبرګي پړانګ لیونې سترګې لرم

او د جمال دنازکۍ لپاره

ګوره په رم د هوسۍ سترګې لرم

*  *  *

زه چې په لمنځو کې شمال وشیندم

دځنو بوی به دد لبرو هېر کړي

منم دخیال تیشه به و غور ځوي

دغه بتان به د ډبرو هېرکړي

* * *

درته به راولم شاعره اروا

دورک ارم دښاپیرۍ په بڼه

درته دلمرزرین تارونه اوبم

بس د سندرو دکیږدۍ په بڼه

* * *

که د سندرو ښاپیرۍ ښکلوې

څوګامه مخکې له خبل ځانه راشه

دشنو بنګړو شرنګایې اورې کنه؟!

درته ناري وهي کاروانه راشه

* * *

دښکلا داسې جزیرې درښیم

چې دشاعر سړي په خیال کې نه شته

ستا دیوې ټپې په زړي کې شته

دنورو ژبو په جوال کې نه شته

* * *

راشه چې لرې پروازونه درکړم

چې په شفق دې وزر ولګيږي

درته سکې د ښکلا توس اخيستې

تا په به ستاد هنرو لګيږي

* * *

راشه دشپې راشه شاعر به دې کړم

په شنواوبو کې رانه ستوري ګرځط

دوی پرزرين مازيګر لوړه کړې

چې تول به ستا دغزل توري ګرځي

* * *

ليک مې درو ليږه درو به رسي

هو دالهام ديوې کوترې په لاس

بازان يې نه لوټي ځواب يې راکړه

دشنه باګرام ديوې کوترې په لاس

* * *

ستا دبهير ياران په مينه نما نځم

له شنې دعانه مې ځولۍ ډکې دي

منم بهیر به شي د شمعو بهیر

له شهیدانو مې غونډۍ ډکې دي

* * *

دا عاشقان دا عارفان د بهیر

د صوفیانه نظام جنډې به واخلي

چې یې منصور ؤ په مستۍ راوستی

په نوم د هغه جام جنډې به واخلي

* * *

ګوره چې هېر دې نه شم هېر دې ډیر دي

یوځلې بیا وایم چې بیا به راځې

پر پښوانو پلونو دې ګرد پریوتی

کرانه کاروانه خامخا به راځې

* * *

خدای خبر هېر دې یم که یاد به دې یم

زما پر زړه باندې خو ګرځې مدام

ها ، یې ماشوم شې لولکۍ رانیسې

دګل پر غوږ ګوباندې غورځې مدام

* * *

راشه جانانه پرې سندرې وایه

دخیرې پانې پانې ژبې زما

راشه چې جانانه پرې سندرې وایه

د خیرې پانې پانې ژبې زما

راشه چې شین شم رنګ مې زیړاوښتی

د بېلتانه له زېړې تبې زما

*   *   *

چې مازیګر شي شنو دروته زما

لمر دزخمي مارغه په شان راشي

ستړي وزر راباندې و غوړوي

کاروانه ستا دزړه په شان راش

پیښور، ناصرباغ نوی کمپ   ۲ / ۷ / ۱۹۹۸

# لکه زېړه زرغونه

راځه دواړه د ښکلا پر سفر ووځو

له خپل کلي نه به لرې ولاړ شو

په یوه ځای ، په یوه آواز ، په یوه اندازه به

لکه غبرګې او خوږې سندرې ولاړشو

دژوندون داوښ مهار به

دواړه ونسیو په ګډه

راځه ولیږدو په کډه

باردستو رو د سپوږمیو

د سندرو چندڼ بو یوا و دزېړو زرغونو به

سره وتړو دلمر په زرې مراندو

دژوندون داوښ پر شابه یې بار کاندو

خامخا که په پیچومي کې پښه نیسي

ته یې ووهه د ګل په لښتو تاندو

* * *

د سلګیو پر کږلیچ به

لکه سپینې اوښکې واوړو

د خندا په خانقا کې،

به دلوی صوفي له زړه نه

په ګډا لکه د میني اوښکې واوړو

چې یې لمر پر تېرد ځو که لګیدلی

هاغه اوږ کنډو خووینې !

د کنډو په غیږ کې تویې

د لمر ځاځکي ځا ځکي وینې

مخامخ به یوه او بل ته

د کنډو په سرکې کېنو

یکه زار به راته وایې

زه به سر د تپې واخلم

ته یې بله مسره وایه

ورپسې چې غاړه تاو کړم

ته یې هم راسره وایه

ته به ښه یسته سوال شې

زه به ستا د سوال ځواب شم

د طاووس ښکه ته شه

زه به غېږه د کتاب شم

ته به داسې رانه پوښتې

راته وايه چې ژوند څه دی

زه به داسې درته وايم

چې ژوندلو يه کرونده ده

پرې کرلي چالونګ دي

چا ګلاب دي او چا بنګ دي

او چا ګڼدا زغولودی

چاته خوږ لکه لومړۍ بوسه دناوې

چاته خپل ژوند د پردۍ ناوې په شان دی

شوې يې سترګې پسې سپينې

خو ده پټ مخ په پلو دی

ته خبره يې که نه يې

زه او ته دواړه شپانه يو

تورې سپينې رمې پيايو

د شيبو او د ګړيو

راڅه پټ شو په شړيو

راڅه څلمو پر ليمڅيو

خدای دې وکړي چې ټول مات شي

یر دې ږدمه پر بنګړیو

* * *

ګوره دا دې هم هېرنه شي

د کفنو او بدل زده کړه

له ځیرو ځیرو وژغنو

له پستو پستو وړیو

وئډارنې ته خو پانې غوندې رېږې

مرګ خو بازنه دی چې زانې غوندې رېږې

مه ډارېږه زه په زړه در سره نیم کړم

څنګه موسکه شوې او برندې راته ګورې !

هو پو هیږمه دژوندله ډېرې تندې راته ګورې

هسې ټوکه مې کوله

تا ته چاوې چې ډارنې

ها ، دی لاره کې مرګ ناست دی

ترې نه وباسه څرمنې

ته داغشي در سره کړه

زه لینده غاښکي په غاښکي سمومه

دژوندون د تاک په سرکې

هغه وا ښکې سمو مه

چې په میو یې طاووس غوندې رنګینې

زما او ستا دژوند شیبې شې

*　　*　　*

د شپو ورځو پربرګۍ رمه دې پام دی؟!

ددې لارې په کږلیچ کې

راته ښکارې چې ناست بودی

یا کیدای شي وږي پړانګ جوړ کړی څودی

ته به غشي راکوې زه به یې بولم

که مې وویستو د مه به کوم غیږی کې دې څملم

دژوندون د جنت حورې غشی راکړه

شابه شابه د نرلورې غشی راکړه

ها تېره لکه د تورې غشی راکړه

ورته ګوره پر تندې باندې یې ولم

شیبه پس به ګورې غېږکې دې څملم

ورته غوږ شه چې یې خرپ دې تندې واورې

په خدای خرپ بې داسې خوند کړي

لکه تا نه کله کله

چې په ټنده کې خوله واخلم

* * *

افسانې غوندې به یو بل

مخ په وړاندې سره بیا یو

سره لاس تر غاړې دواړه

د ښکلا رمې به پیایو

چې په ګوته کې ژوندی مې

داغمی د سلیمان وي

لاس یې خلاص توره ی آزاده

که لښکر لښکر د یوان وي

چې مې خدای په زړه کې ناست وي

چې تر څنګه مې جانان وي

که ځنګل ځنګل ماران وي

لکه غرونه راروان وي

ښاماران وي ښاماران وي

پرښتې د خیال راکړی

د هنر اسم آعظم دی

خدای راکړی یو قلم دی

چې راښکلي پکې ناست دي

په زرګونو تېره غشي

په یوه ګوزار به ووځي

د هر مار ښامار له تشي

که د غشو له شغا نه

د هوسۍ غوندې ویرېږي

ورته ګوره ټول ماران به

درته داسې واړه کاندم

لکه ستا د غچۍ ګوتې

پوره هم نه نیمه برخه

که لاوې دې زړه کې رخه

بس واړه واړه چینجي به

دوریښمو ترې نه جوړ کړم

تروېښمینو پستو لاندې یې مړه کړه

چې تود زړه دې باندې سوړ کړم

د شفق خمُ کې یې رنګ کړه

سپین ټوکر دژوندانه پرې

سور چکن غاټول غاټول کړه

درانه اخوالږوراخوا

د سره لمر مخکې ولاړ یم

په هر ځاځکي د باران کې

زهر جنې وړنګې مینځم

ته ولاړه د ګلونو پرل غونډیو

لکه سپل د طاووسانو

لکه زیړه زرغونه یې

یمع ستا د دیدن تږی

راته ګرانې اوبه نه دي

ته یې غېږې ته ځولۍ کړه

د ګلپانړو رګوزاره

په ګډا ګډا یې یووړې

چا ویل چې زما طبعه

بس روانې اوبه نه دي

راځه لرې لرې ولاړ شو

نا آشنا وطن ته لرې

راخورې چې کړي پر سرمو

ښاپیرۍ د خوب وزرې

یوه ورکه جزیره به
د ښکلا چیرته پیدا کړو
که امیل د دنګې غاړې
دې خطا کې رانه پرې شي
که یې ګوتو کې تش تارهم
رانه ښه ذرې ذرې شي
که به ټولې مرغلرې
ترې خورې شي ترې خورې شي
راته وایې به سندرې
ټولو م به مرغلرې
چې خوره به راته خاندې؟
که منت به پر ما کاندې؟
پرښتې د آبدیت به
یو نا څا په راپیدا شي
او پر تو یو مرغلرو
به یوه دم خوره ځلا شي
دواړه لاس به ستا له غاړې
د امبل پر ځای راتاو کړم

په روان تخت کې به د رومو

د يدار پيالې به مو شو مو

۱۹۹۷ پېښور

# لړ راتم شه لا رويه !

د شهيد آشنا دسمال مې

ملا وستنى دى له ملانه

شيبه وړاندې يم راغلى

له درنې لويې غزانه

ازانګه دګړنګ ژبه

شنه د تورو له خرپانه

په خورجين کې مې راوړى

هغه سر له اژدها نه

چې يتيم يې شو کولى

و ، له څانګې د موسکا نه

* * *

د خپلې غربې مې پرې دي

پښې مې ډکې له !غزو دي

په ټټر کې مې راوړي

مات سرونه د نیزودي

د کاروان او ښان مې سترې

شهیدان مې پرې راوړي

مشالونه مې د شپودي

دا په وینو سره سر ګړي

* * *

ته دې غبرګ غوړونه وخورې

داناري مې ولې ناورې؟!

ګورې نه چې درپسې یم!

ښکوم دې د پښو خاورې

د سړي په شومه موړ شې

په دې زړه لکه دواورې

د جانان د غم رانجه مې

دي په لپو لپو څښلي

دامې ټول خواږه یاران دي

داچې نن پرې جوړ دي څلي

هسې تش راغلی نه یم

زمانې مې په ځولۍ کې

لږ راتم شه لارویه

افسانې مې په ځولۍ کې

هر فریاد ته مې ورکړی

د سلګیو لړم ټک دی

د اوبو پر ځای مې څښلی

د خپل ډک زړګي پټک دی

د هر داغ تنۍ یې واکړه

زړه مې ډیر د مینې ډک دی

د ایمان په تېغ یې وژنه

که پکې هم ذره شک دی

* * *

یو ما ښام ویو آشنا مې

زما زړه په لاس کې راغی

د کینې و ه که د مینې

خو چاړه په لاس کې راغی

وې دازړه دې د کارنه دی

چیرته نوی زړه پیدا کړه

ترانې دې ټولې خامې

ورته سوی زړه پیدا کړه

چې غزلې یې خوراک وي

داسې روی زړه پیدا کړه

چې له ستورو خولګۍ واخلي

لمر پلوی زړه پیدا کړه

*   *   *

ماوې ښه لکه چې زړونه

دروپۍ ځلور خر ځیږي

ددوو سترګو په دکان کې

آشنا سپین او تور خرڅیږي

نغد غمونه به پرې ورکړم

که نغمې په پور خرڅیږي

زورور غزل به وا خلم

که غزل په زور خرڅیږي

دا سلګۍ خو مې ور جار شه

که څه ټنګ ټګور خرڅیږي

* * *

زما دزړه کوترېې پرېښو د

آشنا شغ لکه باز لاړو

د قدیمو ستر ګو والا

په ډیرنوي اند از لاړو

زړه مې کړنګ له لاسه پریوت

هی هی ما ت یې آواز لاړو

داغمی ذرې ذرې شو

ښایې ښه له کاره ووت

د اشنا د سترګو تږی

څه پر للمه لاره ووت

داددوولمرونو ستوری

له رنګين مداره ووت

* * *

لا رويه هغه شپه مې

په خداى دومره ډېر ژړلي

ما خو هغه ورځ هم نه وو

دنن شپې په څېر ژړلي

هغه ورځ هم يوه ورځ وه

ښايي تانه به وي هېره

ته ما شوم وې که درياد شي

مو ده ډيره پکې تېره

ها لښکر چې وراغلی

زموږ کلي ته دژنو

د سور خولو هلکانو

د شېر بريتو ببر څنو

تورې سترګې يې ګور ګورې

يو نيم رګ سور د کر کڼو

هغه مست په تکبیرونو

په ډلونو په اتڼو

هغه شپږزلمي دې یاد شي ؟

ها چې دربې یې تو دې کړې

چې ځنګی یې کړې ګوزارې

ها چې څڼې یې کودې کړې

ها غور ځی به یې چې لنډ کړ

چې ټپې به یې اوږدې کړې

د شهید په یوه ټپه یې

د عالم ستر ګې لمدې کړې

ها چې ټولو ، ووې خدایه

»د مرګ سترګې یې ړندې کړې«

چې د بنګو په چلم یې

سترګې سرې ردې کړې

د چینې بر غاړه ناست وو

د چینې پر سر چنارو

په چنار کې قمري ناسته

او کوکو يې وار په وارو

سور کی اوښ مې راپسې و

د ګونګرو يې شرنګهارو

ټولو سترګې کړې راپورته

پکې پروت د مينې ښارو

ددې ښار دزړه په منځ کې

يو کاروان په ټپو بارو

جوړ لباس د لارويو

له قربان او يکه زارو

خو نتلي زړه ته تللی

يو غمګين غږ د ستارو

او د مينې له دې ښارونه

راتاو شوی لوی ښامارو

دغه شپږ زلمې راوتي

د همدې ښامار په ښکارو

* * *

وئ !داځه کوې خوب یووړې

لارویه رابیدار شه

کیسه بلې خواته لاړه

زوروره په کرار شه

څه به زه لارې ته سم شم

او څه ته پر سمه لارشه

او خله جیب کې مې خوارېږه دي

لږه خوله دې پې خوږه کا

د کیسې ودرانه بار ته

د غوږو ، ورته اوږه کا

هسې لاره لنډووپرې

چې اوږده را نه کیسه شوه

دا ته څه ستړی ماشوم یې

چې دې دومره تلوسه شوه

لکه تار کیسه تر ووځي

ستا خو زړه سوری، پیسه شو

د کیسې په منځ کې ډیر دي

د ښتې غرونه ګړنګونه

له سینو وتلي غشي

او په تُورو پرې ځانګونه

له خپل سر سره دي لوبې له

له ښامار سر جنګونه

پکې مینې هدیرې شوې

تشوي ډک پالنګونه

د کیسې دا منځ به پر یږدو

په خدای ډیره به ترخه شي

اوس ایله سر ماښام دی

هسې نه چې شپه پخه شي

د ښامار دوښو ځاځکي

به له سپینو ستورو جوړ شي

او غاښونه به یې ګورې

چې له ځینو ستورو جوړ شي

زخم زخم د زلمو به

له زرینو ستورو جوړ شي

دغه ټول ستوري به ګورې

چې یو بل سره جنګیږي

څوک به تښتي له مداره

څوک به ځمکې ته رالویږي

په کمرو کې به مات شي

په چینو کې به غور ځیږي

ژوندۍدو پلونو تر منځه

شي دانه پکې د لیږي

* * *

په منځ منځ کې مه ویریږه

د کیسې پای ته راځمه

سپي دې غاپي رنګ یې ورک شه

د کیسې سرای ته راځمه

بس کیسه روانو مه

بیا اصلي ځای ته راځمه

ته ما شوم وې لارویه

څپله مست اوښان کتاروو

ځونډوري یې وې غاړې

د ګونګرو یې شرنګهاروو

یو انډی به د غلې و

بل انډی په غشو بارو

کاش د ګیډې دوزخ نه وای

داد غشو خو ، ښه کارو

بل مو کارنه و ، خو ښکارو

ته به وایې د څه ښکارو

د کیسې والا ښامارو

ته هم ناست په یوه انډي کې

او ګڼې به اوښ مغری دراوړد کړ

تا څپیړه ور کوله

الوتکه په هوا کې

نا ځا پيو کړ نګيدله

ته به وايې د بارلاندې

ژوبله او ښه نړيد له

د يو بم بچی يې راوړ

هغه بلار به لنګيدله

بم د غره پر څو که ولويد

خو د غرو يې مزه نه وه

شي کيدای چې وي وچ موری

يا يې مياشته پوره نه وه

تاګنی د مټ د پاسه

تو غندي په شانې کيښوه

ګڅه سترګه دې کړه پټه

ښی دې خلاصه ورته پريښوه

د ښي لاس دويمه ګوته

دې راکش لکه ما شه کړه

په خندا دې کريږه وکړه

هوا بازدې تما شه کړه

دغرور شونډې کړې بوڅې

د پولادو چلوونکي

دګنيو په بند بند کې

دې ترخه زهر شيندونکي

ستا پر خوايې الوتکه

په آسمان کې راکښه کړه

د توپ ننبې ته يې جوړه

ستا ګنې او ستا اوښه کړه

دباروتو د زړه خوله يې

له ويشتو وړاندې خوښه کړه

هاغه غر چې يې آسمان ته

لښ نژدې څوکه رسيښي

چې اوښان پکې دوريځو

ددې څوکې تېره سرته

شپښ اوښان در ښتيا راغلل

تش روان وو ته به وایې

چې بس بار په بریښنا راغلل

چې ګډوډ له هوا بازیې

د خوږې ننښې نظر کړ

په یو ، رپ کې یې د سترګو

درز له غره سره ټکر کړ

یوه ګردي کاڼي د غره یې

د ښتګ پر ځای مات سر کړ

یوې تېرې ترانګې د پرښې

لکه لورنیم په ټټر کړ

په مښو که کې یې واخیست

ته وادایې لوی ارمان و

ها چې وړه یې په هوا کې

له هوانه کړه غاړه

الوتکه دړې وړې

ګړنګونو پورې لاړه

پروزرو یې شادو ګانو

کړلې چیغې پیغې سازې

ځینو شوخو شادو ګانو

پرې د پاسه کړې میتیازې

موږه هم د الوتکې

غړمبیدنې واوریدلې

لکه ناوې له خوښۍ مو

ستر ګو اوښکې تویولې

پټې پټې مو په زړه کې

خوږې ګوړې ما تولې

لارویه تاته یاد شي ؟

چې ګنۍ دې پراوږه وه

ها اوږه دې پر اوږه وه

ها اوږه دې په دې وخت کې

له ګنۍ نه هم خوږه وه

موږه ټول تاته ووې.

تا ویشتلې مبارک شه!

خدای دې مل شه، په دې غرو کې

درته تیر د نور سرک شه

خودې وخت کې یو نا څاپه

یو کیفیت درباندې راغی

ستا په سترګو کې وې اوښکې

څه هیبت درباندې راغی

د شاعر په شانې بل شان

شعر یت در باندې راغی

افسانې مو درته کړلې

حقیقت دربانې راغی

د ګنې له واړه بار دې

په یو دم سپکه اوږه کړه

اوښ چې غاړه درکړه کړه

دده خوله دې پرې خوږه کړه

له انډي نه دې راټوپ کړ

په ښاغلي غونډې ترپ کې

خلاص ګونګري داوښ دپښو دې

کړل ژرژر  په یوه خرپ کې

دکاروان او ښان دی تم کړل

دیو دوو سترګو په رپ کې

ستا په ستر ګو کې وې اوښکې

تا ورې سلګۍ وهلې

ستا ورې ورې خبرې

په مرۍ کې ښخیدلې

ستا ګنۍ غوځۍ سرې شونډې

دوې ګلپاڼې رپیدلې

ستا په سترګو کې خبرې

په څپو وې په غورځنګ وې

هغه شپږ دګلو ونې

نس ته تیرې یوه نهنګ وې

خودې شپږو شو کولې

له نهنګ نه پښې د سنګ وې

شپږ او ښان له بره راغلل

یو ځاروان تش راروان وو

شپږ دستماله هر دستمال کې

تاو دوړانګو یو باران و

سپینو اوښکو کې راشنه مو

ځانګې ځانګې ارغوان وو

په دې هر دستمال نغښتی

هر یو زړه زما جانان و

* * *

راشه راشه چې دې ښکل کړم

زما ښکلیه لارویه

ته زما دنغمو سیری

یه زما ماته زړګیه !

د دې شپږو لارویو

ها اووم ملګری ته یې

دکاروان دغزلونو

او سندرو څوری ته یې

یادونه: ګنۍ (ګنی)     ۷ / ۱۲ / ۱۹۹۷  ناصرباغ

# یو شاعر وژنمه یو قتل کوم

ورځم د ژوند د جریدې پر سپینې پاڼې باندې

د خو نړۍ قاتل عنوان لګوم

یو داسې تور مې پر خپل دین او پر ایمان لګوم

چې په ژوندون کې مې څوک نوم وا نخلي

زه که شیدې شمه که شات شمه که قند او نبات

چې د ښار ښکلي مې په ژبو لکه زهر او ذقوم وانخلي

په هغو کلکو تکو سپینو اطلسي رسیو ملا تړمه

راکوزول چې پرې شین سترګي هوا بازله هوا

زموږ د کلي پرسم منځ باندې خوار بمونه

ځم نه ودریږم ملا تړلی د غره سرته خیژم

له هغې شنې پرښې را با سمه روسی توغندی

چې مې د ښکلي کلیوال شپونکي د زړه په تودو وینو سور دی

هغه شپونکی چې په شپېلۍ کې به یې ژبه د څپو ګډه یده

چې په سندرو میوندۍ کې یې ملا له د ټپو ګڼېده

هغه شپونکی چې یې د ستورو غوندې وري درلودل

هغه شپونکې چې یکه زارته یې سپوږمۍ د تور وشپو ګڼېده

هغه دده په وینو سور هغه روسی توغندی

د کلي پېښ ته راوړم

چې ترینه دروند او تیره تبر جوړ کړي

په شکرانه کې یودوه درې منه غنم ورکوم

له ابرهیم نه په بخښنې هسې نه چې پرې بتان ما توم

په دې تیره په دې درانه تبر مې ځان وژنم

اد کې مورې لاس مې مه نیسه ځان نه وژنم کاروان وژنم

هغه کاروان چې همدا ستا زوی یې له کاره وایست

په جادوګر عشق یې د عقل له مداره وایست

هغه کاروان چې له چنار سره یې زړه پیوند کړ

چې له چناره سره څانګې څانګې و غځیده

چې د چنار پاڼې یې ژېړې کړې پرې و غړېده

چنار اخستې د برکلي له شپانه نه په زکات سندرې

سپینو اوبو کې به یې خامخاوي څنبلې اوښکې

د کومې بورې کومې ورارې هوسۍ

خو ما د ټولو ښوا وبدو سره

چنار د لرې کلي جانان ته کړو په مینه اهداء

خو جانان و نه ما نه

وې دې خبرو کې خبرې شته سندرې نه شته

خوند د باروتو په کې ډیرد ی او شکرې نه شته

پر هغه کلکو تکو سپینو اطلسي رسیو ملاتړمه

راکوزول چې پرې شین سترګو هوا باز له هوا

زمونږ د کلي پر سم منځ باندې خرو اربمونه

له توغندي جوړ په درانه او په تیره تبر چنار غوځوم

پریږدئ چې غرونه غرونه رنګ شي او چې خرپ یې و اوري

دې زورورېې د ښایست پرکروندې باندې و سیوری کړی

پریږدئ جانان مې چې اوس لمر وویني زیږه زرغونه وویني

پردی چنار څه کوي خپله جامه شنه وویني

ورځم د برکلي کنډو ته د شپونکي شهید له قبر ځنې

ځوګر دي کانې په ځولۍ کې راوړم

پردې دې نه ویرېږي ، سترګو ته دې لاس نه نیسئ ، نه یې ولم

زه پرې د خپلې نازولې او شاعرې شپې تندی ماتوم

نن مې لاسونه سره دي سترګې مې سرې

چې شومه دم شي شپه پخه شي او ویده شي خلک

هغه شاعره ښاپیرۍ که چیرته راشي د الهام له ښیښې

اسم آعظم به یې په پیښکه د سالو وتړم

سلام یې نه اخلمه مخ به ورنه واړومه

له ډیره قهره به غاښونه ورته و چیچمه

ورته به ووایم ورځه په مخ دې زیړ ګلونه

وینې مې نه چې مې لاسونه سره دي، سترګې مې دي وینې وینې

ګوره کنځادرته کومه او له سرنه دې د ستورو ډک د سمال غور ځوم

بیا به آسمان ته په دې توره شپه کې ځنګه خیژې !

اخر افغان یمه پرعزم باندې ټینګ ولاړیم

بس دی پر ما د جادوګر حسن منتر مه وایه

یو شاعروژنمه یو قتل کوم

یوه غوغا جوړوم شورجوړوم

خپلو سندروته پیغور جوړوم

لاس چې رانه وړې ګنې لاس دې په خنجر وهمه

زه مې په خپل زړه کې خنجر ښخوم

کوم وړي سپي ته مې دا زړه غور ځوم

تر هغه سپي ښایست نه سپی ښه دی

چې مې دالعل کړو ، ورپه غاړه وې په دې کوتي لعل زه څه کوم؟

وئ !دامې چې په جادوګرو لاسولاس ونیوه؟ !

چا سندر مارې مې په زړه کې په کټ کټ وخندل

پیښور ، ناصر باغ ۱۹۹۷/۱۲/۲۲

# دهوسۍ د شیدو بوی

بیا داونښکوله شبنم مو

وچ د سرو سترګو غاټول کړ

د پاتا ټغر مو ټول کړ

په جو مات کې مو بر وځې کړې هوارې

د زیړې شهید په شانې زیړې لمر ته

مو نږ په اوښکو امدې ورځې کړې هوارې

په ټټر کې مو ټکور کړل پرهرونه

زنګ مو ګډ کړ د غلیم پر خنجرونو

د مړګ سترګې مو کړې ټیټې

د ژوندون په برګو سترګو

د نظر لاس یې ور غوځ کړ

د جانان د ښهو د رګو

هر سهراب د زخمي زړه مو

نوش د صبر نوشدار وکړل

په خندا مو پر هرونه

دلیلا د سر سالو کړل

مونږ تراخه تراخه وختونه

ډوب د شاتو په کندو کړل

غم مو ونیو له مرۍ نه

ترې قلنګ د خوشحالۍ مو په زور واخیست

سپین لمنې ژوندانه مو

د تودې مینې تور واخیست

ډیرو مستو لیونو مو

په ورغویو کې اور واخیست

پا ړو ګرو شازلمو مو

مرګ په شان د منګور واخیست

پرې مو وتړل د ژوند ګیډۍ ګلونه

***

زمونږ ژوند لکه نجلۍ زمونږ د کلي

چې د جنګ په ورځ پيدا شي

او د جنګ په شپه شي پيغله

ښايست په آيينه کې

اول موسکه شي بيا کټ کټ په خندا شي

چې نلی يې ښې رجړومه

د سل ډزي ما شينګڼې

سلايي يې ماته ستن د کلاکوف شي

د خنجر په څوکه خال پر زنه کيږدي

له چاودي بم نه وباسي نري نري تارونه

په کې وپېيي مرۍ او مرغلرې

په ځونډويو کې يې پټې کړي هنداري

ترې نه جوړ کا اميلونه او هارونه

چې د مرګ موزيکی سترګې کا ورجګې

پسې شونډې کا ندي بوڅې

له خندا نه پسې داسې تکه شنه شي

ته وا پاس د غره په سر کې

زيګويو دمجاهدو وهي غاړه

او دهسک په لوري پورته

الوتکه ترې نه و لاړه

دليوه له ځرمن جوړه

چندني چمبه په لاس کې

داد دنګو غرونو پيغله

کليوالې ټپې وايي

دملالۍ ټپې وايي

دا دجنګ دوخت کيسې دي

چې په وينو تکې سرې دي

لابه خلاصه يوه نه وي

چې سل نورې ورپسې دي

هو منم چې ستا په زړه کې

ډيرې ډيرې تلوسې دي

چې ليوه وه چا وژلې؟

چې ځرمنه يې چمبه شوه

د نجلۍ په اوږدو ګوتو

ټپه څرنګه لمبه شوه

ښه ده غوږ کېږده زړګیه !

هغه شین ځنګل خو وینې !

چې د شنه دریاب په شان دی

چې راښکې پرې خوږ مېده مېده باران دی

چې پر سر یې د مرګ زیړه بیړۍ ګرځي

پرې د پاسه د بوډۍ د ټال باد بان دی

دا ځنګل داسې ځنګل دی

وخت ناوخت پرې د پولادو ږلۍ اوري

کله کله یې په غېږ کې

د باروتو سیلۍ ښو ري

د دوزخ د لمبو ستوري

د دې شنه ځنګل په غېږ کې

یوه زرینه هوسۍ ګرځي

ته وا سپین ستوري ترې ورک دي

لکه زیږه سپوږمۍ ګرځي

دا سې وخت و چې هوسۍ روغه هوسۍ وه

لکه اوس لیونۍ نه وه

د سپوږمۍ سپینې رڼا ته

دوو کبلیو به رودله

دآسمان ستورو لیدله

یو سهار چې یې کبلي په خوب اوده وو

د هوسۍ تیونه تش وو

څو چې ډک تیونه راوړي

یو کبلی یوه کبلۍ وه

زیږي لمر ته ویده پریښول

لمر خپل ځان ورته هوسۍ کړ

دوی یې غیږ کې تاوده پریښول

کله وړانګه ورته ژبه کړي څټې یې

پلوشې یې خوارږه ښکر شي ګروي یې

هوسۍ لاړه یوې دا سې شنې ورشو ته

چې سپاره پکې ډوبيږي

دبمونو تش ډولونه پکې توی دي

داو ابنه چې په باروتو کې را لوی دي

لړنه ډیر غونډې ترخه دي

دګنډیر غونډې ترخه دي

خو هوسۍ يې خوري په خوند خوند

خدای شته ډیر ورته خواږه دي

په شيبه کې يې بس تش تيونه ډک شول

چې په پښويې تي لګيږي

پروښو يې تي لګيږي

ټکی ټکی سپينې پۍ دي

دوښو پر پاڼو لويږي

له نشې او له مستۍ نه

دهوسۍ ملالې سترګې

سرې شوې څرخ وهي ګډيږي

دزمرۍ غونډې ځليږي

لکه دوې ډیوې بلیږي

په قدم قدم روانه

مستـه مستـه ده نشـه ده

دا زرینه هوسۍ ګورئ

نن د شنو میو شیشه ده

د زړه سر ته یې ور کړې

د یرغل لړم لشه ده

کش او کړپ یې لرې واورید

څه یې شک په رړه کې تیر شو

نا څا پي یې لیوني غوړونه څک کړل

سره په وینو خوله لیوه یې لرې ولید

یو سور سوی یې په زړه تیرو بیر شو

نیزه باز یې له خپل قهر ځینې جوړ کړ

د جنګي آسپې په شان پر لیوه راغله

***

د هوسۍ په ښکر پیبلی

د ځنګله دلیوه زړه دی

له دې زړه نه دهوسۍ د شیدو بوی ځي

له شیدو ځنې دلمر د شغلو بوی ځي

د چمبې له خواره غرېنه

څه د سو یو نغمو بوی ځي

۱۳۷۶ د روژې مبارک میاشت پیښور

# په ټپو يې ژبې واکړئ

غر له غر د سره نښتی

جنګوي تندي د کاڼو

سل منۍ ډبرې رغړي

ته وا ميندې دي دبيا نو

له اوږويې خور جينونه

لاندې لويږي دګلپاڼو

ميندې بورې پر ګور ګورو

پر کر کڼو پر ممانو

درمندونو کې راتوی شول

کټوري داورله زاڼو

لمر هم ټول سيوري وژلي

دژوندون د شنو بکيا نو

د شيرين وطن په نوم دې

فرهادي تيشه در واخله

ډبرينې دروازې کړه

د دې غرونو خچې پچې

چې غولا نځې يې شي ډکې

دژوندون چينې دي وچې

په دې غرونو کې بنديان دي

زرسيلو نه د طوطيانو

په نبا تو يې ماړه کړئ

په شکرويې ماړه کړئ

د مرګي تندې ځپلي

په سندرويې ماړه کړئ

چا رانجه وربانده خنبلي

چا په غشو دي ويشتلي

پر ټپونو يې دوا کړئ

په ټپو يې ژبې وا کړئ

په کټ کټ يې په خندا کړئ

آوازونه ورته راوړئ

پر وازونه ورته راوړئ

دوطن په شنه آسمان کې

يې خواره واره په سبل کړئ

پرې جارو د جنګ لوګي کړئ

جوړ د سولې ترې ا مېل کړئ

*　　　*　　　*

له تبې درواخله پاستی

چې ډم ډول ته ورکړ لا ستی

ډنګه ډنګه د ډول غږ دی

د ټپې د کهول غږدی

زنګوي ستوري په غیږکې

په ګړنګ کې راټول غږ دی

د خپل داغ رانجه یې ځنبلي

ناست د سرو وینو په رنګ کې

بیا د سوي غا ټول غږ دی

ورته ځیر دی داسې ښکاري

د نرګس سترګې یې ځاري

وايې بیا به کله پا ځي

چې محشر جوړ شي او نا ځي

چې دروح پر وچې للمې

نغمې څاڅکي څا څکي څا څي

پاس پرې ناسته قمرې ښکلې

د ګل ونې کږه څانګه

يې ليندې غوند ې راښکلې

دآواز غشی يې راشي

داسې خوږ مې پر زړه لګي

چې رګ رګ مې په ګډاشي

لاس د يار مې ږدي پر سترګو

ټولې ګوتې يې رڼا شي

هغه خدای چې رانه ورک وي

په هر لوري راپيداشي

*   *   *

ځئ چې غشي ليندې واخلو

دليوانو په ښکاروو ځو

يو څو نوې ټپې واخلو

په قربان او په زاروو ځو

ګورئ !دازموږ شعاردی

دلیوه پر سترګوزاردی

هسې نه چې يې پر تشي

چیرې و لګيږي غشي

چې ځرمنې يې سورې شي

زموږ کار به بیا ښه نشي

هو لیوانو ته اخیستي

موږ د غشي په تلي دي

چې بې رحمه يې وژلي

سل هو سۍ او زرکبلي دي

په هنر هنر به وچې

دلیوانو کړو ځرمنې

ترینه وبه خر يو پاکې

هغه شنې ځيږې وژغنې

په وطن کې مو بې شمیره

شته درانه درانه توپونه

د ډولونو په شان ګیډې

وازې خولې لکه دیګونه

چې له خولې نه یې راوځي

د دیوانو آوازونه

په اوازکې یې اورونه

ښاپیرۍ یې دي وژلې

سو ځولي یې کورونه

د دیو غږ به ترینه واخلو

شوراو ځوږ به ترینه واخلو

د هر توپ پروازې خولې به

دلیوه څرمنه تاوکړو

په کې تود په سراوتال به

ساز دسولې او دنیاو کړو

پیښور۱۳۷۶ تله۲

# ته به راځې، ته مې په خوب لیدلې

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

پرسردې تاو ود هراتۍ تورد لونګې، د کندهار زلیمه ٭

په کې غونچه غونچه ټومبلي تور لشي اوزرین رنګي غنم

لشې لشې بانه دې نېغ وو ، شمله دارزلیمه

اسماني آس دې تر پښو لاندې مستانه روان و

په شرنګا شرنګ لکه موزونه ترانه روان و

پر مخ روان لکه روانه زما نه روان و

قدم قدم یې ود سردا ستا دانو استاد

ته وا چې نال نال یې چا جوړو له تیشې د فرهاد

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

دغه دزیړې زرغونې تر پلو شو لاندې شنه غرونه وینې !

زرین وزري طاووسان دې استقبال ته ولاړ

دغه د سر د شفق په شال پټې رڼې ویالې روانې ګورې !

درته وریښمینې څڼې بیا دې ښا پیر یو خورې

ته به راځې ته مې په خوب لیدلې

ولې به نه راځې ، نو خود به راځې

چې یې ستا نوم زموږ پرټنډوټک وهلی و په شلو میخو

تر تو رولاندې مو په پرې سرونو ستا په خاطر

شهیدانه رقصونه ډیر کړي دي

د خپلو وینو پر څادرمو ستا په نوم ، نفلو نه ډیرکړي دي

زموږ د پیغلو پیغلو خویندو د سینو په غو څولو باندې

د ی المانو قصابانو چړې ډیرې پڅې

راځه راځه دزړو نوبت کې مو نینې دي د پولادو پخې

بو.ن یې واخلې تېرې داړې شي د مرګ ورته له وېرې پڅې

ته به راځې، ته مې په خوب لیدلې

تر تا قربان، دصوفیانه نظام منصور سرداره

للمي غاټول ته پر خې پرخې، پسته ور، بارانه

رنځور وزړونو ته اناره دانګور سرادره

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

په خامو پیوها لمدې چړې رندې دي رندې

هغه په تاندو وینو سرې تورې نن زنګ خوړلې

خبربه نه یې چې مغرورې قرعونې ککرې

ددریابي قهر زرین غوندې نهنک خوړلې

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

د سخې جان سپینو کو ترو درته لویه سلامي نیولې

تر تا جار یږې خوایې ستا غوندې زلمې نیولې

او ښکو تا بیا د جوړو لو ستاو تاج ته د غمې نیولې

کر کې ځپلې یو د سختې مینې ډیر تږي یو

یه تر الما سو ځلیدونکیه او ځپانده روده

په غورځنګو نو شه په تور کمر کې لاره باسه

زموږ د بخت پاچا راځه پښې دې مه وبا سه

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

پر سردې تاو د هراتۍ توره لونګۍ ، د کندهار رزلمیه !

په کې غونچه غونچه ټومبلي تورلشې اوزرین رنګې غنم

لشې لشې بانه دې نیغ وو شمله دار زلیمه

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

ته به راځې ، ته مې په خوب لیدلې

۱۹/ ۱۰ / ۹۸ پیښور ناصرباغ نوې کمپ

# ښاپیری زما همزولې

ښا پیری زما همزلې، او نغمې ترما مشرانې
ښا پیری تر ګرانی تیره. خو نغمې رابانده ګرانې
ښا پیری په خوب کې ویښې، او ښاغلي نغمې راوړي
ښا پیری په ویښه راشي، خوبولي نغمې راوړي
ښا پیری بده بلاده ، واښکي واښکې له تاک واخلي
زما په زړه کې وغزیږې، رانه واګې دواک واخلي
چې منکر شمه له مینې، دا نو ځان راته ښکلا کړي
ماشومتوب ته مې را ستون کړي ، افسانې راته ریښتیا کړي
ښا پیری د اختر شپه ده ، زه د بر کلي ماشوم یم
مرګي څو راته نیولی، خو ژوندی ددې په نوم یم
له بدرنګ جنګ نه مې ساتي ، ښکلي غرونه رانه تاو کړي
شین د شنو بنګړو له شرنګه ، ساز د سولي او نیاو کړي
خو چې وخت دښکلي جنګ شي، شنه بنګړي ایسته ګوزار کړي
د منصور سکنی خور شي، سپینې لیچې راته دار کړي
زه یې توري د غزل کړم ، د لونګو دا یې راکړي
خو چې وړی د مستی شم، د شنو بنګو دانې راکړي
ما د ډول په غږ کې نغاړي، ګړنګونو له مې یوسي
د نغمو مستې څپه شي، غورځنګونو له مې یوسي
ښا پیری له قافه راغله، زمونږ کلی ور معلوم دی
په لجرومه کې یې کښلي، په وریښمو زما نوم دی
په لمانځه چې ودریږم رکعتونه را نه هیر شي

ښــا پــیـــری مـــې زړه تــه راشــي، جـنـتـونـه رانه هیر شي
ښــا پـــیــری د ګلــو ونــه د غـــو ټـــی نـظـر بـه راکـــړي
ښـا پـیـری سـخـي مـلـنګـه، د خـولګـی نـظـر بـه راکړي
ښـــا پـــیـــری د شـــعـــر الــــهـــام شـــي، کلـــه کله تری تم شي
د زمــــري غـــونــدې یـــې ځـارم، ښـا پـیری د هوسی رم شي
ښـا پـیری کلـي تـه راغـلـه، ښـا پـیری بـه غـره تـه بـوځـم
ښـــا پــیـری د مـینې تـنده ، ښا پـیری بـه زړه تـه بـوځــم
د رحــمـــت وربــځـــي راغـلــي، پـــرځنګل به باران وشي
ښـا پـیـری تـر کـوچـو سـپـیـنـه، تـکه سپـینه غوا به لوشي
ښـــا پــیـری بـیـګاه تـــه راشــه، اوس مــې ښه کاروبار جوړ دی
پـــه زرګـــرې شـپې مې تاته ، نن له ستورو نه هار جوړ دی
ښـــا پـــیـــری زمـــا اســتـاذه، پـــر غـــزلـو یې لاس بر دی
راښـــودلـی یـــې پـــه خـــوب کـې، د سـندرو پـیـغمبر دی
ښـــا پـــیـــری مـــې سـپـیـنـه بـازه، شین د زړه کوتر مې وخوري
پـه پـــنـــجـــو کـې مـې ور ټـول کـړي، په هنر هنر مې وخوري
ښـــا پـــیـــری پـــه سـفـرځـمـــه، د خـبـرو ځـــوری راکـــړه
خـــامـــاخـــا کـــه شـیـن طوطي شوم ، د شکرو ځوری راکړه
ښـــا پـــیـری مـراقـــبه شـــوه، ښـــا پـــیـری خبرې پریښوې
مـــوره رانـــه ګـرځـې، تـــرې نـــه مات مې یو بنګړی دی
ښـــا پـــیـری تـه مـلامـت یـم ، تـرې شـکـولی می ځونډی دی
کـــچ او کـــیـــچ یـې وړم د لـــیـــچـو ، شنه بنګړي به ورته راوړم
د لـــونـــګـو دمـریـو ، ډک ځـــونـــډې بـــه ورتـــه راوړم
چـــې لــه ځـان ســره روان شـــم ، ښـــا پـیری را سره مله شي
د سـتـړیـا مـتاع مې لوټ کړي ، مـهـربـانـه غـوندې غله شي
که نـړیـی مـې مـخـالـفـه، ښا پـــیـری مـې پـه طـــرف ده

چې امامه د ګلونو ، او رنګو پرخو د صف ده
د اخلاص څپېړې ورکړم ، چې کوم دیو د وسواس راشي
زه چې دومره ریاضت کړم ، ښاپیرۍ به په لاس راشي
ښاپیرۍ رنګونه راکړه ، سرو غاټولو رانه غوښتي
ګلابونو او نرګسو ، آن چې ټولو رانه غوښتي
ښاپیرۍ په غنم لوکې ، زمونږ برکې ته راشي
د حجرو د جوماتونو ، د ګودر کلي ته راشي
رلۍ بند له کلي تاو کړي ، شین قرآن په غیږ کې واخلي
زمونږ کلی به د امن ، او ایمان په غیږ کې واخلي
اوس به ول د څنګو راکړي ، لو کومه ملا ترمه
یو ګیډۍ قبوله شوې ، په آمین دعا ترمه
نور قلم به مې سور ګل شي ، په خوږ لاس کې مې کړلی
ښاپیرۍ په شین دسمال دې ، غوځ ورغوی را تړلی
که له تندې مرمه مرمه ، که ژوندون سراب شي

مرغلره خوله به راکړي ، ښاپیرۍ به شین دریاب شي

۱۲/۱۲ /۱۹۹۸ پېښور

# شین همځولی ((دځنګل دلیک ځواب))

مینه مې ومنه په مینه مینه
ستا پر کرکنه پر ممانه سلام
ستا دنښتر پر زلفو زلفو سلام
ستا د ځیږې پر پانه پانه سلام
چې ستا پر سر ده له کتاره وتې
پر هاغه ستړې ناسته زانه سلام

* * *

لیک دې خه ډیره موده مخکې راغی
هی هی چې زه دځواب تاب نه لرم
دخیال نیلې مې ګوډ په نیمه لارکې
ملونی یې پری پښه په رکاب نه لرم
دشعر پادشاه ته یې شاګرد دی یمه
بې له تا شین دشعر کتاب نه لرم

* * *

داسې خومه وایه چې هیر دې ډیر دي

ګرانه پادشاه مې تــه یــې پیـر مې ته یې
په ویښه هم زما په ســترګـــو کــې یـــې
د سهار خوب مې یې تــعبـیـر مې ته یــې
د زړه هـــنـــد اره د رپـــــســـې ګـــرځوم
د هغه ستر نقاش تصــویر مـــې تـه یـــې

* * *

ګـــــرانــه زه ډیــر د میـــنــې وږې یمه
لکه یــتـــیم مــې پر ســر لاس تــیـــروه
ما سـره غــــرونــه غرونـه مــینـه کـــوه
زمــــا پــر زړه د هـــنـر لاس تــیــروه
په تور کــمـــــر کې هم چې ښکلي ګـــورم
پری ښه روښان د جـــــوهـر لاس تیـــروه

* * *

خالي لا ســـــونـه مې له ستـــورو ډک کړه
چې پری لمنه د سپـــــوږمـــې ونـــیســــم
ستـــاونــې د نګې د عـــا ګانـــې زمــــا
د ښکلا عــــــرش ته به ځولــې ونیســــم

دا ګيدړ خيال وخـــتـــونه برند دي ولــې ؟
لنګه زمـرۍ بـه تـر لکـــۍ ونيـــســـم

* * *

ته د خـــدای شيـن باغ يې ښامارخونه يې
چـــــې ګنـــې تا دلال ثـــنـــا ويلـــې
زرګـــونـه کـاله تـا دحـال پـــه ژبـه
دهـــغـه ستـر جمال ثـــنـــا ويـــلـــې
تـــا دبلا ل درنګ پـه تـــوري تـــوري
د پـــرښـــتـــو دخـــال ثـــنـــا ويـــلـــې

* * *

ما بـــــه سوما ګڼـې دخپـلـې غيـــرې
دهـرې شـــنـې ونې پـه سـردې قسـم
شـــراب شـــراب به زما شعـر جـورېږي
پر شـــرابـونو دکـــوثـــر دی قسـم
لـــــه درده ډکه مې غـــزل تـــوري لـره
پـــرشـــــهيـد غـــاښ دپيغمبر دې قسم

* * *

زه چې ماشــــوم وم افسانې مې خوښې
چــــې ترابـــان بـــه ګـــل انـــدامه یو وړه
مــــاوی چې ته به وې قـــاصد جوړشوی
تـــابــــه خــبــــره تـــر بهرامه یووړه
په دریم ګــــام کې به شول ښکیل ترابان
کـــــه دا ولجـــه بـــه یې دوه ګامه یو وړه

* * *

ته خــــو اوس هم له شنو خوبونو ډک یې
په خـــوب کې ډیر زیـړي ګلان رالیـــږه
دګلا بــــونو په رنګونـو کـــې رنـــګ
هـــا ســـــور وزري بـلبـــلان رالـــیـــږه
یـــه د سنـــدرو مرستـــنـــد ویـه زمـــا
دغـــزلـــونـــو غـــزالان رالـــــیـــږه

* * *

لــه مـــــانـــه ښکلیو تښتولی زړګـــی
څـــه چې راپــــاتې وه سـندرو وخـــوړ
یو څه شین رنګ شـــوتاته لیک پری لیکم

څه هم د اوښکو مرغلرو وخوړ
د سر ښیښه کې چې شو ګل د فکر
وینو ته تږو په ډېرو وخوړ

* * *

یو څو خیالونه نوي لوزي لرم
ځان سو ځوم خو د غزل اور غواړم
منم هوسیو دې ګیلې راوړي
د اګلالۍ قافیې په پور غواړم
د ژوند دریاب لرم څه مړه خونه یم
د څپو ژبه وایم شور غواړم

* * *

ان تر سهاره دې غم ویښ ساتي ما
شپه رونوم تاته شپیلۍ غږوم
د ناصر باغ د شهیدانو ترخنګ
د هدیرې شاته شپېلۍ غږوم
ستا د شهید شپونکي ویرنه وایم
د "پسرلي ماته شپیلۍ" غږوم*

❋ ❋ ❋

ستـا درنـــو چـــینـــو دتـــنـــدې مینه

بـــــس د "درویش " په ترانـو مـــاتـــوم❋

"پیــکـــار " اشنا یې له سپین غره راوړي❋

خـــمـــار د بنګ په پیمـانـــو مـاتـــوم

له ولولــــو ډکه هـوســی تـــلوســـه

د "غضنفر " پـــــه افسـانـو مـاتـــوم❋

❋ ❋ ❋

تـــــه واچې ستا د سیلۍ شغ پـــه کې دی

د "کلیــــوال " مستـــــې سنـدرې اورم❋

د " شاســـــعود " په پادشهۍ کې ګرځـم❋

نغمې د "مستـــــــې قـــلنـــدرې " اورم❋

چا زهر هم د خندا جـــــام کـې راکــــړل

له چا ترخــې ترخـــــې خــــــبــــرې اورم

❋ ❋ ❋

په وینـه وینم لکه خـــوب ښـــــــا پیرۍ

پر مایــې زیــــری دغـــزل کـــــــړی دی

دچا اواز لـــــکـه دشـــاتـــو خـــوږو
خدا یـــــږو په مـاخویې څه چل کـړی دی
وی: ته خبرې کـــــوه چوپ یې ولـــې ؟
کاروانه چیرې دې مـــــزل کـــــړی ده ؟

* * *

یوه شاعره هم په خوب کــــې راځـــي*
سوریې کمیس وي دالوان اغـــو ستـی
شـــنــه یې لستو نې لکه ستـا بنفشــې
او سپـــیـــن پرتوګ یې وي د سان اغوستی
ته یې راشیـــــن په تورو سترګو کــې وې
مو سکی نظر یــــې وي ایمان اغوستــی

* * *

کله چې وخـــانـدي ربنـتـیا وایـــمــه
غونډیې غونـــډې شي ارغـوان ګلـونه
رو ښــــان تندی لـــري دلمــر دذاتــــه
شنې رزغـــونې کاندي باران ګلـــونـه
شرنګ دپا یزیـــــب یې وي قدم په قـــدم

وړپـــــيې وروستـو وي روان ګلــونــه

* * *

خـــوږه خوږه دڅپـو ژبـــه وايـــــې
په غـــــور ځنګو لـکه درياب روانـــــه
لکه ټپـه پـــه ســاز کې تــاوه راتـاوه
ســـــــره دډول او دريـــاب روانـــــه
پــــر بــــــد رنـګيـو بـه يرغل راولي
لــــکه دښکلــــي انـقــلاب روانــه

* * *

رانــــــه وي شمـع لګيـد لـــې پـاتـــې
په شو مــــــه دم کې شم له خوبه راويــښ
دخوشحـــالي اوښکې مې سترګو کې وي
په ښکلي غـــــم کې شم له خوبه راويــښ
غزل غـــزل شمه نغـمه نغـمــه شـــم
ويـــــده قلم کې شم له خـوبـه راويـــښ

* * *

شـــــمعې ته ګوره خو په سترګو کې مـې

د تللي خــوب يو سترې سيوری نا ست وي
شمع قـــلم شـــي او خبـــرې کـــوی
پر سريې شيـــــن د غزل توری نـا ســت وي
شمع نښتر شي ، شمـــــع و غـــځيـــږي
پرې سور وزری غـوندې ستوری نا ست وي

* * *

را نژدی زړه ته تر ليـــــلا نــه ډيـــريـــې
دا لری نه ده چـــې مجــــنون دی نه شـــم
خـــــدای مې دې ګل ستـــا دلمنې لري
د چا په ســــترګو کې زرغون دې نـه شـم
چې مې له ځانـــــګې زر شهبازه جوړشي
شم دې ادا نه چې ســــتا زيتون دې نه شم

* * *

زه به په کـــلـــي کې کـو کـــنـــا ر و کـرم
چې ستا مـــــچې را شـــي ګلونه يو سي
او که پر کــــلـــي ږلـــــــیووريـــــده
نو هسې نه چې تـــــش ځانګو نه يــو ســي

خدای مهربان دیګونــــدې شات شي آشنا

زمـــــاله غزل نه دې لفظونه يـــوســـــي

* * *

چـــــې ستا له غيرې يې ګـــلونــه راوړل

مـــيـنـــه د هغې ځانــګې اوروه کنـــه؟

هسې پـــــه خپلـــوکې خبـــره کـــوو

سپينه خولګـــــې مې باندې پور وه کنه؟

ته په ايمان،د شپـــونکې ورور شپيلۍ يې

دا سرافيل د شپيلــــــۍ ځورو ه کنـــه؟

* * *

رانــه خـــــبره اخـوا دې خواشي لـــــږ

ګرانه چې تـــــــيـــرې خاطرې دې ګورم

زه چې مرغان اورم چـــــې ونـــې ويــنـم

ترپانـــــوډيرې خـــاطـــرې دې ګـــورم

هير به مې ډيـــــر وي دومره ډيرهم نه دي

رايادې ، هـــــيرې خـاطـرې دې ګـورم

* * *

د پېښور ګرمې به سوی ومه

خو ترنم دې دباران را په یاد

دومره ښاغلې دبیلتون هم نه وم

تاکړی په سترګو کې یاران راپه یاد

ډوب لا په وچو کتابو کې نه یم

او ښکې لا پېژنم ګریوان را په یاد

* * *

بیا پسرلی درغځوي لاسونه

بیا دپښو ییلو بنفشو موسم دی

ډک دشبنم کنډول پر سر دغاټول

توره بلبله دنشو موسم دی

برګې رمې کوي تکمیل دښکلا

وچې شپېلۍ دشنو ورشو موسم دې

* * *

غواړمه دوې لسیزې شاته لاړ شم

ستا دزلمي غرځه کیسه راواخلم

پری کرونده دزړونو وکرمه

په لپو لپو تلوسه راواخلم
داغ دبارو تو شته د ذوق پرلمن
اوس به د مښکو ګلکاسه راواخلم

* * *

ها تور کمر پرسر یې سپینه سپوږمۍ
لکه ډولۍ چې پر تور اس تیروي
دي په رګ رګ کې یې سپین توري راشنه
هره شپه کومې ته الماس تیروي
ته وا چې سر یې پر اسمان لګیږي
د سحر لمر یې پر سر لاس تیروي

* * *

هماغه دی ! هغه غرڅه اوس هم وینم
دهاغه تور کمر پرسرولاړ دی
ښکر دالماسو یې سپوږمۍ ته رسي
ستر ګو کې ستوري لکه لمر ولاړ دی
دیوه پردي یرغل ځرپې یې واورید
ځک ځک، غوږ غوږ، خنجرخنجر ولاړ دی

* * *

غرځه نشه ، غرځه دميو ډکې

ځو تنکۍ ځانګې د سوما خوړلې

غرځه د شنه ځنګله مجنون وګنۍ

غرځه دی « ځنې دليلا » خوړلي*

ځنګه غلام شي په ګل ځانګو کې يې

قلمي ګوتې د بادشا خوړلې

* * *

غرځه پريږده په جنوبي ځنکل کې

د شمال خواته د شمال سره ځم

د برګ وزرو الو تکو پر سر

له يوه زرين مارغه د خيال سره ځم

د لمر په رنګ ، رنک سره دانه د باران

خورم په ټالۍ کې زرغون ټال سره ځم

* * *

له سپين سالنګ نه يې لمر ټول ونيو

له روس نه دومره الو تکې راغلې

کـــوچ پـــکې نشـــــــته خوله اور نه ډکـــې

ګـــورئ داو سپـنږـــــغږ کې راغـــلــــــې

دمــــه یې وکـــــــړه دبا ګــرام پـــــــر ډګــر

داپــــه لتـــــــون دکومې ورکـې راغـلـه ؟ !

❋ ❋ ❋

یـــو ځـــو شیـــــن سترګو نا اشنـــا وګړو

پـــه برګ وزرو کې بـــنـــزیـــن واچـــــول

پـــر ځـــــــای دزړونو یې په لاس دشیطان

سیـــنو کې تـــــور کانـي دکین واچـــول

داور بـــمونـــــــه یې دلــــــپـــــــو لاســو

پر دعـــا ګانـــــو پـــــــر امیـــن واچـول

❋ ❋ ❋

دا بـــــرګ وزرې پــــــــه دوره راوتـــــــــې

زمـــــوږ دکلي پر ســـر اور تـــــویـــــــوي

دا ظـــالمان پر ځیکر ولي زلـــــمیـــــان

له ځـــوان زړونـــو نـــه یې زور تویـــوي

پر سپینو لیـــچو یې ســـــــرپـــــه ونـه کړه

ترینه د شنو بنګړیو شور تویوي

* * *

راغلې دوړو شاهینانو په شان

سپینو کوترو نه یې بام اخستی

په مازدیګر کې یې چړې دي ښخې

زمونږ له کلي یې ماښام اخستی

بس په زخمونو یې نما نځلي یومونږ

رانه یې ګرد سره آرام اخیستې

* * *

هغه ده درومي د ځنګل پر لور

چې ځوان غرڅه رانه عدم ته یو سي

کباب یې وخوري له شرابو سره

ښکر د الما سو یې موزیم ته یوسي

له مستو سترګو نه یې رنګ دغورځنګ

دمرګ د توري شپې تورتم ته یوسي

* * *

غرڅه سری سترګې پاریدلی ولاړ

تر پښو زنځیر د «لیلا څڼې» را تاو*

هلته ملا ماتې سوما هم وینمه

تر ملا یې سری دوریښم کڼې راتاو

دماتې څانګې لاس یې غاړه کې پروت

تری سورځنډی سپینې مشکونې راتاو

* * *

دبرګ وزرو الو تکو وزر

دشنو نښترو پر سرونو لګي

یو سیل د سرې او سپینې غشي راځي

دتور کمر په ټټرونو لګي

آه دغرڅه د پښتې خرپ مې واوريد

بلې لمبې یې په ښکرونو لګي

* * *

غرڅه له ډیره درده کړیکه وکړه

درزونه وکړل دکمر ډبرو

دځوان غرڅه کړیکو ته ټینګې نه شوې

منډه اخیستې ده لښکر ډبرو

ژور ګـــــــړنګ لـه ازانــګو نه ډک دی
راپنـځولـــــی دی مــحشـــــر ډبـــرو

* * *

غـــــرڅه دمستې ځوانۍ درد اخیستـــی
کله په پـــښـــو کله په ســر ګـــډیـــږي
په ګډیدونکي نــظـــر هر څــــه ګـوري
ونې ګــډیــــږي او کـــــمر ګـډیـــږي
پر سر یې بیــــا دبــلا سیـــوری راغــی
چـــــې یــې داو سپنــــې وزر ګـــډیږي

* * *

شـــــو نابــبـره بـــرګ وزرو تـه ځــیــر
داله‌آســــــمان څنګه پـړانګان وریـږي؟ !
پری زنځیرونــــــه راشیوه شین سترګـــي
ته‌وا کـړۍ کـــــــړۍ مــاران وریـږي
خدایه ! وروليږه لــه غـــیـــبه درمـــــان
جهان دردونه یــې پــر ځـان وریـــــــږي

* * *

د شنـــه ځـــنګله په هغه لـری خـــوکـــې
ماته دبر کـــلـي شپـــونکـــې ښـکاري
ټوپـــــک په ننبه او د پړانګ په څـــوکې
داسی پـــــه بريد لکه زمـــری ښـــکاري
ګوره شين ســــــترګونه به ښکار خطا کړي
زړه د تور سترګي کـــــې غورځی ښـکاري

* * *

هـــــه هــه غورځي له ډيـــره درده کـــوي
له مـلــخـــي ټوپـک يـــې اور وريـــــږي
ها سپين زنـــــځير په سرو ګولـيو ولـــي
پر هغو شنو ستـــــرګو هم تور وريـــــږي
په ترپ داو سپنې پړانــــــګان تښتـــــــي
او پر زخمي غرڅه ټـــــکــــــور وريـــږي

* * *

غــــــر څه پر کاڼو باندې خـولــه ښخه کړه
په مـــــو ملايي پسې کمر څـــيــــــر وي
غـــــر څه د ځـــوان ولي اروا وبـــــولئ

په ښکر د تور کمر تېر ځیر وي
ته وا ، علي په ځلیدونکې توره
دیوه تور کافر ځیګر ځیروي

* * *

له تور کمر نه شنه لښتي روان شول
دروميي دکلي تر ګو دره رسي
په دی او بو کې مملايي ده ګډه
دژوبلو ژړنو تر پرهره رسي
تکور تکور ژړي پيا توري په لاس
ځي دجنګونو تر ډګره رسي

* * *

دشعر با دشاه ستا حماسي افسانې
تر حقیقت نه هم ځلانده وینم
تر شعر نه شنې ونې دې بُوری مه شه
دزړه دعا په وینو تانده وینم
تل دې سپوږمۍ ستا دنښترو پرسر
دنور په تار کې اویزانده وینم

* * *

دتـــــورو لــــړو پــــه خلوت کې غلی

په شــنه چـــمن کې لکه پــیر ناست یې

یــــــار !دسهــار دخـوب کاروان یې زما

دیــوه رنـــګین غوندې تعبیر ناست یې

زر ښـــا پیـرۍ مـــــې دزړه تخت ګرځوي

پکې بـادشــاه پکې وزیـــــر ناست یې

* * *

ته دشعرونو شین هـــمځولی زمــــــا

دســـــورو وزرو بلـــبــــلانو کتـــــاب

ستاله ګلونــو نــه مې رنــــــګ راوړی

وږمې تری خیـــــژي ستا دلیک دځواب

لادې بل باب تـــــه رسیـــــــدلې نه دی

کاروان طا لب طالـــــب دمینــــې دباب

په نښه شوي:

دښایسته غزل بون محد صدیق پسرلی دغزلونه مجموعه ماته شپیلۍ. پیاوړی شاعر درویش درانې ، زلمې نازک خیال شار عبدالله پیکار ، پیاوړی کیسه لیکونکې اسدالله غضنفر ، دمستو شعرونو شاعر کلیوال خټک ، ددری ګوټیزې دایرې شاعر شاه سعود ، یوه افغانه سندر ماره چې خوراواز یې افغانستان رایادوي ، زما ایډیال شاعره چې په انساني ځیرو کی مې نه ده لیدلې ، چې دبوی ښکلې اروایې زما دتصویر په ورکه جزیره کې اوسیږي چې حضور یې وخت په وخت په شعرونو کې احسا سوم دلیلا څښې زمونږ په غرونو او ځنګلونو کې یو ډول ځنځیري وابنه دي چی اوبدل شوو کو ځیو ته ورته دي.

# ليونيه سندر ماره

که دګلو  څانګه څانګه ، پاڼه پاڼه

په روپۍ روپۍ  خرڅيږي

چې روپۍ درسره نه وي

ته به څه کړې ته به څه کړې ؟؟

که بازار کې دمرغيو پېی خرڅيږي

که له غمه وي خوب وړی

لکه سيند چې يو سي مړی

دسهار لمونځ دی قضاوي

په پنجره درننوتې

دځنګله توره بلبله

په مېنو که کې سندره

په وزرو کې يې ستوري

او په ستورو کې يې پټه

له سپوږمۍ درته رڼا وي

په منګول کې يې راوړی

يو تنکې ګل د سوما وي

او دغرونو پر سرونو

زيړی لمر وي څرک وهلی

که له ګل نه ،له غوټې نه ، له ګل پاڼو

لپه نه شي ډکولې

چې يې وشيندي دښکليو پر سرونو

دښاغليو پر سرونو

او د دنګ دنګو ځليو پر سرونو

داسې وکړه چې داغوړ دې را نژدې کړه

ليونی يمه له راز دې خبرومه

دښاغليو له انداز دې خبرومه

يوه ښکار ته لکه باز دې خبرومه

که ګلان غواړې دغرونو او دګټو پرسرونو

څپلۍ وباسه په يېلو پښو روان شه

داغزيو ، دسکروټو پر سونو

دُعا تو يه کړه له لپې

لپه ډکه وړه له ناره

وهه‌لاره ، وهه‌لاره

څو دمینې تر تم ځایه ورسیږې

دښکلا تر لویه خدایه ورسیږې

ها غه پورې خلک وپیژنه دوی دي

چې مې سترګو کې دیار کرې ګلونه

اوبه خور ته یې له مونږ نه اوښکې غواړي

دسرو وینو دپرهار کرې ګلونه

ورته ګوره دا غزو په خیر ولاړ دي

دوه درې نه دي ترزرګونو ډیر ولاړ دي

ډکه لپه دسکروټو

کړه په پښو کې ورګوزاره

له نرګسه تر ګلابه

دبلبلو تر چغاره

یوه شنه‌لاره پیدا کړه

لیونیه سندرماره

پېښور 1999 / 10/12

# ژوند

دنګيدلې يوه تيږه ده له پانه
ده څرګنده ګړندۍ لکه بيانه *
يوه غشي په کمان کې ځان راښکلې
په هوا کې په مستۍ ځي يوه زانه
د سپوږمۍ نغمه په خوله توره بلبله
په مښوکه کې يې تکه سره ګلپانه
کومې نجلې په کې ټال دی اچولی
پر بيا لې باندې ولاړه ده بيکيانه
په اوبو کې منتشر دي دوه تصويره
يوه تا بلو ترې نه نه جوړ کړه ناجانه
انځور ګردي انځورونه پنځولي
پرخه پرخه دژوندون پر هره پانه

* دبيانې اورواني تيږې تشبيه د يوه عربي شعر تراغيزلاندې

# شغ

شغ شو راغلې شغ شو لاړې
پولادي برګې کوترې
نه يې زده غومبر دمينې
نه يې رپ وهي وزرې

***

پرې اوښانو مهارونه
تر ها پورې رغزي تللي
داوښه په پښو کې بيا دي
دګور ګرو اغزي تللي

***

بيا برګۍ په هوا ګرځي
تو غندي ولي راولي
داچې پاس پکې سپاره دي
تر شيطان دي هم ناولي

***

ســـــورکـــــې اوښ وهـــي ترپـکې

پـــه لمـبـــو يـــې پـــــټ وري دی

يـــو څـــو ګـــزه تـــــرې نـــــه اخـــــوا

غـــــو رځـــــيـــــدلـــــی کـپـــری دی

# بدرګه

ته د ستورو شا ته پټه
له سپوږمۍ نه ډېره لرې
د سحر تورو بلبلو
په راوړې درنه سندرې

***

لکه لمر په غر غره وي
مازدیګر کې مې موندلې
هلالي اوږې په غاړه
په اختر کې مې موندلې

***

له غره کلي ته راغلې
په ګودر کې په خندا شوې
پرک دنیا دې کړه روښانه
لکه سره سپینه رڼا شوې

***

کړي دنیا راسره رخه

چې ته ماته وې راغلې

چاته مه وایه حالونه

چوپ چوپ غلې غلې غلې

***

تا چې ماله راوړې

ځوندوره آئینه وه

ستا په مخ راته هر کاڼی

او ډبره آئینه وه

***

تا یې کړې بدرګه ده

چې مې اوښکې دګریوان دي

تا له ما سره ژړلي

ټول د کلي شهیدان دي بدرګه

# دګل په سیپارو کې

سیـــپـــارو کـــې دګل ،بـــلـبـــلان بلـــبـــلان

وایـــــــي وي دي ودان ، داوطـــن دافـــغـــان

چاته ټیت مه شه ټیټ ، ددې غرونو غرور

دګلونو غونډی، سکه خویندې دطـــور

خدایه ته یې شه مل، په پاک روی دحضور

ډیر ښاغلي لرو ، مریـــدان دمنصـــور

داســـرتـــیـــري دعشـــق ، پتنـــګان دایـــمان

دارتـــه ځـي په زارزار، یا قـــربان یـــاقربـــان

شپې شوې ډیرې اوږدې، ورک سبا راولئ

باردنـــور قـــافلې ، درڼـــا راولـــئ

دیتـــیم پر خولګی ، بیا موسکا راولئ

مهـــا جرې مرغی ، بیرته بیا راولـــئ

شین بڼکـــي طــو طیـان، سپیـــن وزري مارغان

تور لوګي چې د جنــګ، کـړي جـــارو پــــه یــو آن

خدای به بیا کړي راشنه ،تور و شپو کې سپوږمۍ

په ګډا به راځي ، په ځپو کې سپوږمۍ

لپې لپې به څکو ،په اوبو کې سپوږمۍ

زرغونه به موشي ، په رګو کې سپوږمۍ

د وطن مور مو وړي ، پاس په ســـر شیــــن قــــرآن

مخ پــه لمــر یـــو روان، مــــوږ د ستـــورو کاروان

□ / ۹ / ۱۹۹۹ پېښور

# امیل

ګل و رانه ګل و ، خو دا ګل کله د باغ و

پړ مخې مې واړوه د تیلو ډک څراغ و

ډېره غریبي وه زما زړه پسې داغ داغ و

شپې د غم اغوستی هغه تور لباس د زاغ و

شین شال دې پر سرو آسماني رڼا دې راوړه

سرې جامې په غاړه الواني رڼا دې راوړه

نیمه شپه را پاڅیدم عجبه ننداره وه

لو څه وه سپوږمۍ په شنو اوبو کې را ښکاره وه

لاړمه ځنګل ته د بلبل سوې ناره وه

نوې یې راخستې د سندرو سیپاره وه

سر دې نه شو ډک مې ځنګانه ته وو دروړی

مات لاس د ژوندون مې ګریوانه ته وو دروړی

ماته و په غیږ کې عجب جهان راغلی

کشف و راته شوی لکه ورک جانان راغلی

«تا» یې وکړه زړه ته و ماشوم ایمان راغلی

ژبه مې خوږه وه پرې شیرین بین راغلی

ته په څپو راغلې په سندرو کې دې ډوب کړم

سرو سپینو مهینو مرغلرو کې دې ډوب کړم

پیر مې یې پاچا مې یې لا سونه به دې ښکل کړم

ګام په ګام د سترګو برګ اسون به دې ښکل کړم

اوښکې به دې ښکل کړم ، الما سونه به دې ښکل کړم

راوړه د نرګسو ګیلا سونه به دې ښکل کړم

داسې مې خمار کړه چې سرخیل شم د مستانو

پانې پانې ګل شمه امیل شم د مستانو

سین ته دې ګوزار کړم که ویالې ته دې ګوزار کړم

ګـــوره مې چې ځان څنګه له تږې ګل نه زار کړم

مینـــه مینه مینه یم د ښکلي یـــار دې یـــار کړم

تار دې په تسبو کـــې کړمه تار دې دستار کړم

کلــــه الا هـــو وایـــمـــه کلـــه زمــــزمــــې بـــــه

کلـــه بــــه تسبـــې اړوم کلــــه هـــم نغمــــې بـــــه

# کا وا که رڼا يي

ګوره ! راروان دی راغی ځغلنده مشال دی
ستوری ، ته واغشی سور په وينو دغزال دی
شپه ده نيمه شپه ده ، دښامار په خوله کې لال دی
پړک وهي ديار په سينه ټنډه شينکې خال دی
شنې لمبې له جام خيژي کا وا که رڼا يي ده
ريبړدمه له ډاره خطرناکه رڼا يي ده
ستورو را په ګوته کړې مستورې بلګانې
تورې تورې ونې لکه تورې بلاګانې
شاته يې ولاړې نورې بلاګانې
راغلې راپسې ادکې مورې بلاګانې
هاغه ده سپوږمۍ رانه په منډه شوه روانه
سر به بيا راوباسي دوريځو له ګريوانه

ټپ شي ټپ شي ټکی ټکی پر خه پر ګلپاڼو
کله کله سوې قلقله راشي د زاڼو
باد هم یاغي آس دی خرپ یې وایستو دکاڼو
کله په دره کې ششني وکاندي دبیاڼو
شغ شو ، شو پرک مې دبڼو په خواکې تیر شو
نوی مې نظر شو هغه زوړ نظر مې هیر شو
څه ګورم ، دګل پڼو ته پرته رامه نجلۍ وه
سپینه را پریوتې له شینکي بامه نجلۍ وه
دابې شرمه لو څه ښه پوره خامه نجلۍ وه
خټ خټ به خندا وه مسته بې جامه نجلۍ وه
ورغلم نجلۍ نا ، درڼو اوبو چینه وه
ومې ښبله یخه لکه زر ځله کینه وه
بره له ابشارهراروانې دي سندرې
ښکته په ګډادي ورته لمنځي اونښترې
ویښې دي غوړ غوړ دي او غړ نه کوي ډبرې
جوړ غمي د پرخو دي دشپې توري زرګرې
شپه ګوره شاعره شهکاري کوي لګیاده

نـــن خـــو دې ليـدلې پـــه رڼـو سترګو رويا ده

لپې لپې وينـــې تويـــې ټـکـــي ټکـــي پـــې دي

پړانګ ته ګوره پښو لاندې يې سرې دګل غوټۍ دي

واوره په ځنګل کې دکـــبـلو ســـوې سلګــــۍ دي

ښخ په هاغه پرښه کې ښـــکرونـــه دهـــوســـۍ دي

وګـــوره جـلال تـــه دجـــمـــال پـــه وينـــو پايـــي

دلتـــه هـــرزوال بـس دکمـــال پـــه وينـــو پايـــي

۲ / ۷ / ۲۰۰۰ پېښور

د اروابناد اسحاق ننګيال په ياد کې

# غزل

يو شرنګ شو چې د شنو ما تو بنګړيو ســــــره ولاړ
يو وږور مـــې و مـــيـــن شـــو ښــا پيــريو سره ولاړه

يو ځــوان غم يې را پرېښود چې سپين ږيرى به مې کړي
ما شوم شو او د ستورو د ګـــوډيـــو ســـره ولاړ

سهار زموږ بهير ته و راغـــــلی يـــــک تــــنــهـا
ما ښام له ډېرو ډېرو ډيوه ګـــيو ســــــره ولاړل

زيړ ګل و د ګلابو ، په سره اورکـــــې و راشـــيــــن
باران ته تــــږى تـــــږى و ُ ږلــــيو ســـره ولاړ

زرين کبان يې ونيول د مينې په چـــــنــګـــــــک
ساقي شو د شـــــرابـــــــو لـــه کشتيو سره ولاړ

رباب وً د چند نو مست په مستو تـــــپو مســــــت
شرنګا يې شوه را پاتې له ځــــونــډ بو ســـره ولاړ

سوما زموږ د غره و خـــو ډ يــــــر ژر دابـــــد يــــت

له چتو چتو پېغلو جينکـــــيــو ســــــــره ولاړ

فقير و خو چې رام يې کړ سپين آس د بادشــــاهــۍ

د شعر داوو خويندو شهزاد ګيـــــو ســــــره ولاړ

يو شين زرغون طوطي و خو حيران يــــمه پــــه دې

په سبل کې د جنـــت له توتکـــــيــو ســـــره ولاړ

مړه شوي ګړنګونه يــــې ژونــــدي پـــه ازانګو

شپونکی آشنا مې ورک شو ل شپېلـــــيو ســره ولاړ

کاروان د سرو غاټولو يې وځان پـــــسې راتـــــول

ننګيال په بدرګه کې له غـــتـــيـــو ســــــره ولاړ

۱۹۹۹۸/۵/۷/پېښور

# د لته د یاقوتو چینه

دلته په دي خاوروکي دستورو ډک أسمان ویده

دلته مو (ساهو ) جانان دي دلته مو)) امان ) ) ویده

مونږ د ب تصویره  یو ،بي لمر د یو

دلته دهندارو غوندي ځلنده انسان ویده

مروله تندي مرو ،سترګي پرکوم ښکلي خوږي کاندو

دلته د (( یاقوتو چینه ) ) لال دبدخشان ویده

دلته دوطن دغرونو شین طوطي دمه کوي

دلته دچندنهوونه دلته ارغوان ویده

اوښکي د لیلا یې دسندرو توري توري دي

دلته مینه مینه د مجنون ځیري ګریوان ویده

دلته به په زړه ګورئ دانوري سترګي کارنه کا

دلته درمزونو درازونو یو جهان ویده

ښکاري مرور دی هغه ورور هغه شاعر زما

دلته دوطن د((پسرلي ((ښکلي ارمان ویده

ډک زمونږ دزړونه دي تشېږي نه رودونه دي

دلته ټپه ټپه ده غزل ویده رمان ویده

پام کوه سلام کوه نیسمه چي ګستاخ نه شي

دلته یو عیار ویده یو ځوان مرد میدان ویده

ده هم پنجه نر مه کړه دوخت له بل مغل سره

دلته یو سر تیری سپا هي دخوشال خان ویده

ستړي ستړي راغي درحمان غېږ کي یې سر کېښود

دلته دکندز دسرو غا ټول بیا بان ویده

# اروانباد حاجي صيب دولت زي ته !

مضطرب يو نن سکون له مونږ نه ورک دی
يو شيرين سړی پرون له مونږ نه ورک دی
چې پرې ستړيو لارويو به سر کيښود
د بهير هغه ځنګون له مونږ نه ورک دی
هر يو توری يې تراوښکو نه هم روڼ و
د خوږې مينې مضمون له مونږ نه ورک دی

# ما بیګاه لیدلې خوب و

ما بیګا لیدلې خوب و

چې شپه را شي او بیګاه شي

بیلتون برید را باندې وکړي

او له غیږ مې یار یو سي

مرغلرې تار په تار شي

له امیل نه مې تار یو سي

***

ما بیګاه لیدلې خوب و

څوک له مانه قمار یو سي

غلچکې په منډه منډه

سور ځنډې له ستار یوسي

په ورغوي کې مې لال وي

را نه داهم ښامار یوسي

***

ما بیګاه لیدلي خوب و

چې سیلاب راشي ښار یوسي

دګودر له جینکو نه

دمنګیو کتار یوسي

شین لوګي له کلي خیژي

اور په غیږ کې چنار یو سي

***

زه سهار له خوبه ویښ یم

چې خوب راشي دلدار یو سي

دبهیر له ځونې غیږې

يو سپين ږيرې سردار يو سي

دی دژوند له مرغلرو

دمرګ پيغلې ته هار يو سي

***

لمدې ستر ګې زړه داغلی

نن سهار له خوبه ويښيم

ته وا ، ښه ږلی وهلی

لاله زار له خوبه ويښ يم

11 / 4 / 2000

# غم

غم دې زما په اوښکو څکه وکړه

پر دې ایمان لرمه

نمک حرامه نه دی

کله یې هم چې لاس ور ورسیږي

ستا د خندا ګلاب ته

له ما یې نه دریغوي را به یې وړي

# دوعا

زه چې سره ګلاب ته ګورم

دزړه تنده مې شي ماته

بې اختیاره دوعا وکړم

کله ګل ته کله تاته.

خدای دې ډېر لري ګلونه

خدای دې نه کړي چې راشنه شي

ستا په سترګو کې ګلونه

# امتزاج

څه ګلاب ګلاب ملګري دې راکړي

زما زړه په ګلابونو کې نغښتې

بلبلک دی بلبلک دی

پرې باران د ګلابي نغمو را وُ ري

زه به ولې ګیله من یم

که یو څوک دې هم راکړي

د ښمنان لکه اغزي دي

څه دنیا خونه ورانیږي

که همدا په ګلابو نو

کې نغښتې بلبلک دی

داغزو په لښته ووهي او شغ شي

سور په وینو اوازوکړي

د دردونو په وزرونو پروازوکړي

پاڼې پاڼې ګلابونه ترې خواره شي

او رڼې رڼې اوبه يې په سر واخلي

ما خوږې خوږې نغمې له تانه غوښتې

ما په وينو سرې نغمې له تانه غوښتې

تا هم راکړې زما ربه !

دګلاب او داغزي له امتزاجه

د دښمن او د دوستانو له مزاجه

ستا د دومره ستر احسان ډيره مننه

۲۱/۸/۲۰۰۰

# ګل او بنیا دم

دګل خوراک خاورې، ایرې او سره

لړې رڼې او ډیرې خړې اوبه

بیا هم سپیځلې دی، ښایسته دی، له وړمو ډک دی

سترګې او زړونه پرې خوا ږه شي له رنګونو ډک دی

خو ، بنیادم چې پریښتو ورته تندی ایښی دی

ګل ته ورګوري او تر اوښکو نه رڼې اوبه څښي

له تکو سرو منهو نه خرپ وباسي

حیران په دې یم ، دا بدرنګ ولې شي

۲۰۰۰/۸/۲۲ پیښور

# غزل

ښېښې يېلې وهم منډې پروت مې غاړه کې پټکی دی

ښاروان مې نارې ناوري ځي کاروان يې ګړندی دی

منګول يې پر لمن کيږدو جوړه زه او جانان مې

تر منځه مو يو خدای دی دې خوازه يم اخوا دی دی

ګلونو مې پر سترګو دير غل تړلې نيت دی

ما خپل دزړه په وينو لمبولی پسرلی دی

د پټ ضمير په باغ کې مې ستا مخ ته مخامخ يم

چې ستا دمخ په مخ راته هنداره هرکو دی

رباب يې کړه مطربه چې په ترنګ يې ستوري ګډ شي

داژوند مې دغمونو لمر وهلې وچ لرګی دی

له زړه نه اوښکو ورشئ له ښکاري نښه خطـــا کـــړئ

لینده په لاس را کاږي دکبلي په خوله کـــې تـــی دی

چې هر یو کلیوال یـې پســې غشـــي دي راخیستـي

شاعر یې غرځنې دی که غـــزل یې غر ځـنـــې دی؟؟

بس ستا دبنګړو شرنګ با نـــدې کوي تول دسندرو

په خدا که بـه کاروان دې پوی په سُر دی یا په لی دی

نریزې تنې داوم ژور دغره لوړه څوکه

۱۷ سنبله ۱۳۷۶

# غزل

دشپې چو پټیا دیوالي ګړۍ ټک ټک ماتـــوي
او که زړګـــر غمـــې دعمـــر په څټـــک ماتوي

ستـــا پـــر تنکیو پښو مین دی ته خبر هم نه یې
چـــې په تنهـــا کولا ســـو کاڼي دسرک ماتـــوي

ښایي دښکلیو تور بانه دي له الماســـو راشنـــه
سپینې هنداري چې دزړونو په سترګک ماتوي

داسې سیلۍ له ستوني ونیسئ چې ګام وانخلي
څلور ګلونه چې په هـر یـــوه څپـــک ماتـــوي

مسته غزاله دغزل ، دبـــیـــا بـــان کاروانـــه
کړه را پیـــدا چـــې دنقـــاد زمری دشک ماتـــوي

# غزل

له زړه نه راشي لکه سـور دوينـو خـال څـاڅـي
له سـوري لاس نـه مـې د سپينې سولې سوال څاڅي

خـدايـه دا بيـا يـې ده د کوم ستوري مرۍ پرې کړې ؟ !
چې يو شفق وينې لـه ټُـورې د هـلال څـا څـي

ها غلته لرې د ښېتر پـه تـن کـې غـشي ښـخ دی
ها غلته لرې تـو دې وينـې لـه غـزال څـاڅـي

نن يې دي پاکې د نرګس ډ کـې يتيمـې لـيمـې
شبنم داو ښکو له لستـوڼـي د شـمـال څـاڅـي

د خوږ اشنا او ښکې مې ښکل کړې هک پک پاتې شو مه
تروه سرکه څنګه د شـاتـو لـه ديـوال څـاڅـي؟ !

د نرې تـار په صـراط وړمـه ګنهکارې نـغـمـې
پـه هـر قدم کې رانه سُر تـوئيـږي تال څـاڅـي

خاورين جهان کړ راته چا رنـګين بڼـکـې طاووس؟
څوک مې په سترګو کې کاروانه زرغون تال څـا څـي؟

۱۹۹۵ / ۱۱ / ۷ پېښور

# غزل

نـــه رانـــــه ازر خوشحـــاله نـــه زوی دازردی
نه مې بت جوړ کړی نه مې غوځ دبـــت وزر دی

خوب مې تښتيدلې که په لاس درغی رايـې وړه
ماته چا ويل چې پر خوبـونـــو دې لاس بـــر دی

ځم چې له لفظـــو نو نه دشا تو مچۍ جوړې کړم
چـــا وې ژړيدلې دلته ګل د پـــيغـــمبـــر دی

بس دزړه په مراندو څو ملا ماتي لغات وتـــړم
ګرانه ! شاعري څه ده ؟ اسان غوندې هنـــر دی

لپه لاس مې ونيـــول ســـاقي کرم به ډير کوی
تـــاتـــــه دې دعا شي خو همدا زمـا ساغر دی

ګوره چې کاروان دبلـــبلانـــو درتـــه راولـــي
راغی له ځنګل نه ، دګلـــونـــو جـادو ګر دی

۱۹۹۹ / ۶ / ۱۳ پيښور

# غزل

ټول مرور دي نوم د کوم يوه په جـــــام وليکم؟
په دروازه چـــــاتـــه سلام وليکم؟ د ميخانې

پرځای د باز بڼکه به قلم کــــــړمه د غشــــــي
به کوتــــــرو تـه د بام وليکم مضمون د مينې

ګلاب خــــو ستا د سترګو په خاطر زړه ماتوم د
نـرګس ورته امام وليکم صف شي چې ګلان دې

راکړی قــــــلم ډاډ د غشي جـوړېدلــو دا چې
ګل اندام وليکم په وينو بـــه داستـــان د ديو د

ټک لکه لړم راکوي زړه ته څوک خو شته چې يو
ورو - ورو په آرام وليکم د زهرو ذکر به يـــــې

" کاروانه " ! نه يې مني خو به خامخا وي پکې
که د غزل هره مـــــــــــصره لکه خيام وليکم

پېښور ۱۹۹۹ / ۶ / ۱۳

# غزل

زمولـــي رانه دتـــاندو غـــزلـــونـــو کتابونـــه
بادونه بې ســـواده دګلـــونـــو کتـــا بـــونـــه

سپوږمۍ زموږ دکلي درنـــو ستـــورو استـــاذه
اوبو غوندې روان وايي دغرونـــو کتـــابـــونـــه

ستا سترګې شاګرداني له تنـــبلو نـــه تنبـــلـــې
لوستـــــی نه شـــي دسوو لـــوو زړونو کتابـــونه

چې ستا وروزو ښو ته مخامخ شو ترينه هير شول
په ياد يې وو دغشو کمانـــونـــو کتـــابـــونـــه

يو څوک لکه چينجې دربا بي څانګو ړګ ړګ کـــې
يو څوک رانه سيزي دچنـــارونـــو کتـــابـــونـــه

يو څه الفبا خو يـــې ظا لمـــې زمـــزمـــه کـــــړه
چې نغاړي پـــه مـــو ســـکا کې درازونو کتا بونه

غـــزلې دزلمو بـــه څنـــګه وکـــړي غـــزونـــې؟!
کاروانـــه چـــې خپـــاره نـــه شـــي دنجونو کتابونه

۱۵ / ۶ /۱۹۹۹ پيښور

# غزل

ستا د تورو سترګو څنګ ته را لویــــدلـی
لېږې لېږې د لفظو نـــو مـــې تــرې ډکـــې
د شپیلۍ غږ وګــړنـــګ ته را لویــــدلی
د تندي خال مې پــــه ژبه ترینه وا خیــست
بختو ر مې دزړه زنګ تـــه را لـــویــدلی
سره لمبه . سپیــنې جامې مـــابه او کـــړي
لمر ، دوا ورو ډک سالنــــګ ته رالویـــدلی
ما په خوب لیده چې پروت یې و په ښنو کې
د پـاچـا سر و ملـــنګ تـــه را لـــویدلـــی
له کاروان غــریـــب نه سُر د غـــزل ورک دی
ستا د ښنو بنګړو یو شـرنګ ته را لویــدلـــی
غرنې نظر مې جنګ ته را لـــویـــدلـــی

۱۹۹۹/۶/۲۸ پیښور

# غزل

چــې تــرانـــو راپســـې درستـــو اقتـدا کړې ده

ماتـــه دکلـــي دګـــودرجنـــو دعـــا کـــړې ده

خـــود بـــه لفـظـــونو تـــه دسرو زرو اوبه ورکوم

ما پيروي ستـــا دلاســـونـــو دکيميا کـــړې ده

زمـــا په ســـرکې پيغـلې ګـــرځي دلرغوني زمان

دلتـــه سپـــوږمـــۍ رڼا پر څانګو دسوما کړې ده

حـــق دی چـــې مـــونږ يې دزمريوپر څرمن وليکو

دپښتنو ټپـــو سيـــالـــي داوستـــا کـــړې ده

په دوو کې هک پک يم له کومې غاړې لاس را تاو لړم؟

دا قـهـــقـــهه راته ساقـــي او که ميـــنـــا کـــړې ده

دتـــار پـــري کـــړي کاغـذ باد په شان چې هر چا ونيو

دهغـــه خپـــل شـــو ، خپـــل زړګـــي رانه هوا کړې ده

چـــې څوک يې نه مني هو ښيار به وي مستان خو نه دي

کنـــه کاروانـــه پـــه غـــزل کـــې دې بلا کړې ده

۱۹۹۹ / ۶ / ۲۸ تنې

# غزل

ریــــاضـــت مـــې لا هـــم هغســـــې روان دی

هغه ښکلی په خدای اوس هم راته ګــران دی

غم دې غل دی پسې غلـــی غلـــی راغـــلم

پروت په زړه کې مې غمی ستا د پیزوان دی

ته راشنه شې په سره شال په شنه لباس کـــې

شیــن طاووس په سر کې ناست دارغوان دی

یوه شپـــه په بـــــد رګه د ستـــــورو راشـــــه

مادې نـــوم دورځـــې زر ځـــله ګـــردان دی

ځلور قله مې پر ځـــای چُـــف دې راګـــوره

ختـــم کـــړی مې په تا پســـــې قـــــرآن دی

ستا کاروان دې خدای د ګل غیږې ته یو سي

لکـــــه پـــــرخـــــه له اغـــزو نـــه اویـزان دی

# غزل

مونږ دوه دیــو کیدلو په تکل کــې سره ناست وو
باران را وریــدلــو په ځنګل کــې سره ناســت وو

د خدای لـه تــرنـم ځنــې مــو غیــږې ډکــولــې
نغــمـــې مـو ښکلــولې په غزل کې سره ناست وو

له ډیــرې خوشحالې مو شپه په اوښکو بدرکه کړه
بلا اور اورکې وو په ځل ځل کې ســره ناســـت وو

موسکــې موســکي تر سترګو پورې هم تللو راتلــلو
خوارۀ د درزیدلو زړونو تل کې ســره نـــاســت وو

شکست وو او که سوبه زمونږ دواړو په نصیب شوه
د مینې د جنګ لوبه وه مورچل کې ســره ناســـت وو

جــــرس نـــه و قـــمـــري د کـوکوګو نارې وهلې
کاروانه لاروي وو په منزل کې ســره ناســـــت وو

# غزل

کلـــي تـــه بـــه درشمه او پاس به غـــره ته وخيـــژو
څنګ تر څنګ به ګرځو لاس په لاس به غـره ته وخيژو
شنـــې درې که ډيـــرې هـــم له سپينو او بـو ډکې دي
ځـــو به پـــکې ځـــو بـه پـــه سره آس په غره ته وخيژو
دوه په دوه به ورک په تور ځنګل کې شو په سپينه ورځ
شپه شوه لکه ستوري د الماس بـــه غـــره تـــه وخيـــژو
ژوند ديوې ګرځندې او مستې ميـــکـــدې نـــوم دی
څه سره له خم او له ګيـــلاس بـــه غـــره تـــه وخيـــژو
څـــه چـــې ځـــو دمينـــې دګلـــونو له کـــاروان سره
پاک له انديښنو او له وسواس به غـــره تـــه وخيـــژو

دعاشورا ورځ پيښنور ۱۳۷۸

# غزل

بې سپوږمۍ یم دیوې تورې شپې په شان یم
ستا تر زلفو هم زر ځله پریشان یم

له باران اوښکو مې شنې زرغونې شنې شوې
لمر ویشتلې هم دوړانګو په کمان یم

سور وزری د زړګي بلبل مې ورک دی
لکه ړدن دانه دانه تیت و پاشان یم

مجال نشته چې زړینه هوسۍ راشي
دیوه وران کمر د ډډې ارغوان یم

و دې کور ته د پاچا دراتګ وخت دی
اوښکې اوښکې له خپل زړه نه راروان یم

داچې یم د شهادت په لمانځه پایم
لنډه داچې لکه وران افغانستان یم

ته وا مانه یې وژلي سل اوښان دي
د منزل د نیمې لارې لوټ کاروان یم

۱۶/۵/۱۹۹۹

# غزل

پاځه له خوب نه خوب دې ډېر شه دخبرو وخت دی

تا وان به وکړې ګرانه ګران تر مرغلرو وخت دی

دوی پــه چنــډن کــې دي خوړلي دمارانو زهر

دشين ښکو شنو طــو طيانو د شــکرو وخت دی

دسهار لمانځه ته داذان پر ځای په غــا ړو پــاځو

زمونږ په غرونو کې دزرکو د تنــځرو وخــت دی

ګيډۍ دې ږدم داوښ په بـــار کې پسې پلي به ځو

بيا دبــروځــــو دســرګړو دمـــزرو وخت دی

ځــم جــوړوم پــه کليــوال جــانان ټوکرۍ دنظر

دتورو سترګو په تو رغر کـــې د ګــورګرو وخت دی

چې شومه دم شي شپه پخه شــي او ويده شي خلک

کاروان دې اوري کنــه دايـــې دسندرو وخت دی

# غزل

اوريـــدې مــې هـــر ســهـــار تـــورې بـــلبـــلې
ستـــرګـــې ستـــا پـــه نغمو بـــار تـــورې بلبلې

خدايه !ژوند مې شين ځنګل دچور کونډې کړې
پـــــه کـــې ګــډې پـــه چـــغار تـــورې بـلبلې

اغـــزن وخت ګل ته دغـــاړې غـــړونـــــــدی و
چـــغـــيـــدلـــې چـــې پـــه دار تـــورې بـلبلـــې

دنرګـــس دغم رانـــجـــه يـــې دي خـــوړلـــي
چـــې چـــوپ چـــوپ دي دچنـــار تورې بلبلې

راليـــږلـــې ، چـــې کاروان غـــزل غـــزل کـــړي
د ســــنـــدرو اُستـــــکار تـــورې بـــلـــبـــلې

۱۹۹۹ / ۱۱ / ۱۴ نريزي کلې

# غزل

کـــله لـــرې میـــکدې ته ، کـــله بـــرې میکـــدې تـــه
هغـــه رنـــد یمـــه چـــې درومـــم، هـــرې هرې میکدې ته
هـــغـــه جـــام زمـــا مراد دی، چې جانان یې را په یاد دی
دثـــواب لپـــاره راغـــلـــم ، ستـــا کافـــرې میـکدې تـــه
شپـــه شـــوه شنو لمبو اغوستې ، دشیشو نازک لباس دی
شیـخه پام کـــوه رانه وړې، بیـــا ډبـــرې میـــکدې تـــه
تیر وتم دیار په سترګو ، کـله بـــاز کـله شاهیـــن شـــي
ماوې راغلې له جومات نه ، بـــرګ وزرې میـــکدې تـــه
له باران دې غیرېږ ډکه، ساقـي راشـــه چې ګل ګل شـــي
دغـــو ټیـــو ډیـــرې راغـــلـې ، بیا لښـــکرې میکدې ته
دکاروان زړه دې مات مات کا ، چې مینا ته غمي جوړ شي
خـــامـــخا که چیـــرته راغلې ، ځوک زرګرې میکدې ته

۱۹ / ۲ / ۱۹۹۹ پیښور

# غزل

د غرونو خلک یو کارونه د بازار نه کوو
شډل پډل ګرځو هیڅ ډول او سینګار نه کوو
د خدای مارغان راځي نغمې د ملکوت غږوي
مطرب ته اړ نه یو او ذکر د ستار نه کوو
د سر قاتل ته هم سلام کوو سلام یې اخلو
ولو یې مخامخ له شانه پرې ګوزار نه کوو
په ستن کې تار شو اچلوی د سپوږمۍ په رڼا
څراغ کې تېل نه سیزو دا د تاوان کار نه کوو
له پړانګ څرمنه اړوو چې لنګې غواوې داړي
پر څانګې ناستې مرغکۍ د کاڼي وار نه کوو
بې خونده نه یو په خوږه په ترخه ښه پوهیږو
خورو یې پر هیز له خوږو شاتو د کو کنار نه کوو
زلفې خو زلفې دي چې لاس پرې وهو خوند راکوي
پر پراته پړي هم ګومان د ژوندي مار نه کوو
په نیمه ورځ ترینه راګرځو نه چې ورک شو پکې
پکې اشنا مو نه شته ځکه شپه په ښار نه کوو
د نګې ښکلا سره د مینې مزې بیا غځوو
ګرانه کاروانه بس خبرې په چنار نه کوو

پېښور ۲۰۰۰

# غزل

چې هر طرف ته ځم زما تــګلــوری تــه یـــې تـــه یـــې

که شپې شوې هم په لو یشته لو یشته ستوری ته یې ته یې

قربان له ګستاخۍ مې راتــه ډیـریـــې ښایستـــه کـړې

زه نیغ په نیغ در ګورمه کوز ګـورې تـــه یـــې تـــه یـــې

یـــو څـاڅکې د شبنـــم یـــمه د لـــمر لـــه ډاره غـــلـــی

ژوندی اوسې د سرو ګلونو سیـوری تـــه یـــې تـــه یـــې

د نـــجـــونـــو کـــه درپـام شـــو نو امیل ته به دې یوسي

ځـــلانـــده د کاروان د غـــزل تـــوری تـــه یـــې تـــه یـــې

۲۰۰۰ پیښور

# غزل

ستا وحشي ښکلا به ټول جنګي آسونه رام کړي
ســـل زره لښـــکر به د کفـــارو په ســلام کـــړي

تش منګي به ډک شي د رحمـت لـه شـرابـونـو
راغی ، باراني ساقي به سرې منګولې جـام کړي

ستا عقـا يي سترګې به يې ګډې پــه هــوا کــړي
سل زره کوترې که راغونډی څوک پر بـام کـړي

زر اور اورکي دهر غاټول پــه تــش کــنډول کې
کينـــوه جــانــانــه چــې ډيوه ډيوه ما ښام کړي

ښکليه چې پر سپيـنـــه ټـنـډه وغـزوې کونځې
شرنګ شي مريدان دې تورې لرې لــه نــيــام کړي

زړه په صبرو ساته يــو ښکلـــی خــو بــه راشـــي
هســـې نـــه چـــې غــم يــې د دنيـا درنه تمام کړي

مستې صو فيـانه ســندرې مــه وايـــه «کاروانه»
ګوره په اتڼ او په ګـــډا به خـــاص و عـــام کــــړي

د نريزې کلې ۱۵ / ۵ / ۲۰۰۰

# غزل

ستا خبــرې لکه تانـــدې مرغـــلرې

وایـــه دیـــرې مې دربانـدې مرغلرې

دوطـــن د پیغلو غاړې دي بـــې هاره

تربنـــو یې اویـــزانـــدې مرغـــلرې

پرغوټۍ شونډو دې ګل دخندا غواړم

دعاګانې مې ځلاندې مـــرغلـــرې

لمبو زنه ترسر تیر شه که یې غـــواړې

دڅپو تر پښو دي لانـــدې مر غـــلرې

څوک دلمر ماښو ساحـــل ته راوتـــلی

دریابـــونه څپ څپانـــدې مرغـــــلرې

په غربت کې دې شاعـــره غنا نغښتې

ستا سنـــدرې او ستا ساندې مرغلرې

پرګودر د کیمیـــا ګروکاروان راغـــی

شنې ویالې به شـــې بهاندې مرغـــلرې

خوست دنریزې کلې ۲۰۰۰ / ۵ / ۱۴

# غزل

نیمه شپــه ده ویښ یم له یو چا سره غرېږم
بیا مې د سندرو له پــا چــا ســـره غرېـــږم
نا ست یم په خلوت کې یو ملنګ د زمانې یم
غـــلی غـــلی غـــلی له غـــو غا سره غرېږم
نـن مې درته ډیرې زارۍ وکړې خو رانغلـــې
مـــه راځـــه ، سبا بـــه زه له تـــا ســـره غرېږم
خدای چې راکړه برخه دښار یاره مه کړه رخه
خوار غریب او ښبـــه یم له ښکلا سره غرېږم
لاس مې په ځنځیـــر تړلي پښې په زولنو دي
ستـــا د شنو بنـــګړیو له شـرنګا سره غرېږم
لاړ شم درمندونـــه وي ځـــوانـــان وي اتڼو نه
ډول ســـــره غـــرېـــږم لـــه سُرنا سره غرېږم
کټ کټ له خندا نه درته شنـــه شـــمه کاروانه
جام یمه زه جام یمـــه مینـــا ســـره غـــرېـــږم

پېښور ۲۳ / ۵ /۲۰۰۰

زمونږ د کلي غنم رنګ شهید ته

# غزل

وطن داور پــه سیند کې لامبي زلمي جنګ خوړلي

د کابل جــان د نجونو مړي هــم نهنـــګ خـــوړلي

غچ د شهیـــد ې لیلا واخـــله منـــجور مجنـــونـــه

د ګور چینجو هم ترې ځونډې ځونډې لونګ خـوړلي

زما یاران ګـــورئ د ګل روانـــې ونـــې ښـــکاري

چا پر ټټر غشي ټـــومبـــلي چـــا پر څنګ خوړلي

نن خو د سپینو تورو خرپ تـــه پـــه میـــدان ولاړ وو

هغه پرون چې وو د شنـــو بنګړیو شرنـــګ خـــوړلي

تانـــدې نغمـــې د ســـرینـــدې لـــه وچ لرګي وروه

نتلي زړونه مـــو مطـــربـــه خـــدایـــږو زنګ خوړلي

هغه لشي لشـــي بـــانـــه داشنـــا نشتـــه نشتـــه

د مرګـــي ژرنـــدې ومـــرې ډیر دې غنمرنګ خوړلي

غزل یې وانه ورې چـــې عقـــل بـــه دې وتمبوي

دې لیونـــي کاروان دی لپې لپـــې بنـــګ خـــوړلي

# غزل

کـــله دا ، او کـــله دا راکـــــوي یـــار
عجیبه خـوف و رجـا راکـــوي یــــار
کـــه دلمر غوندې دغره شاته پټ هم شي
پـــر سپـــوږمۍ واوړي رڼا کـــوي یـــار
چې دستورو په تسبو مې شپې رڼـــې کړې
سپینـــه خـــولـــه به خا مخا راکوي یار
دڅپې غوندې له غیږې نه مې تښتــــــي
ددریاب غوندې غــوغــا راکـــوي یـــار
سلامـــت دې وي ساقي مې دی ورجارشـم
که بـــه زهـــر که ســـومـا را کـــوي یـــار
لپـــې لپـــې راته ژاړي چـــې مـــې وژني
مـــرغـــلـــرې خـــون بهـــا را کوي یار
دکـــاروان مستـــه غـــزلـه دروری شم
څـــه پـــه مینه مینـــه تـــا راکـــوي یـــار

۱۹۹۹ / ۵ / ۵ پیښور

# غزل

ستوري خاندي ستوري ژاړي خبـــر نـــه يـــم؟

دوې راځي ؟كه مــا ور غـــواړي خبــــر نه يم؟

ورځې شپې دي برګې سترګې ؟كه پړانګانــې؟

راته موسكا ؟ كه مې داړي خبـــر نـــه يـــم ؟

چې زما دزړه دجــــام شــراب يـــې نوش دي

پښيمـــان دي ؟او كه ويـــاړي خبـــر نه يم ؟

زما زړه ماتوي دوی به چيـــرتـــه اوســـي ؟

داغمونه كور ويجـــاړي خبـــر نـــه يــــم ؟

دامهين غزل به څـــوک وايـــي كــــاروانه ؟

بلبلان ؟كه سندرغــاړي خبـــر نــه يــــم ؟

شنبه ۱۹۹۹/ ۵/ ۵ پيښور

# غزل

ولې راته وايې چې لېوار کـوه وار څــه معنـــی ؟
کار د مينې کار دی له دې کار نه انکار څه معنـــی ؟

ليچې په لاس راکړه چې ولول څنې خــورې وي پرې
شرنګ د بنګړو خوند کوي تش تار د ستار څه معنی ؟

وو ايـــه دژونـد دفـلسفـــې شـــا ګـــرده وو ايه
سر په اوږو څه معنی او سر وي په دار څــه معنـــی ؟

غاړه کې مې لاس يو سه چې حـس لري او روح لـري
مړې مړې مر غلرې وړې پيلې په تـــار څـه معنـــی ؟

خلک پکـــې خدای لټوي ته ما شوم خبـــر هـــم نا
پوی به شې او لوی به شې چې سترګې د يار څه معنی ؟

د اغـــريب ســـړی ګـــورئ له غرونو پرون راغی ،نن
د و مره جـګ بر جونه د سندرو د ښـــار څه معنـــی ؟

ښــايــي چــې له دې ښاغلي لويه ښکلا ورکه ده
دومره د ښــکلا په لټون سترګې په لار څه معنی ؟
لاس د ښکاري څه وايي ؟ او زړه د غرڅې څه وايي
غوارمه يوه معنی لا ليه چې ښکار څه معنــــی ؟
چوپ شمه که وو ايم چې د نـګه ياره تـــا ښـــيم
خلک راته وايي چې « کاروانه » چنار څه معنــی ؟

# غزل

پکـــې راتـــول مو دي تنکي تنکي الماس درنها
مـــونږه تل وړی دی په دواړو سترګو پاس درنها

شپـــه څه بلا ده ، دوصال مخه نیولـــې نه شي
ستـــوری وستـــوري ته ور وغځوي لاس درنها

دڅیـــړې ځانـــګو کـــې به تورې بلبلکې اورو
پـــه تورو غـــرونو کې به تل ګرځو په آس درنها

دشپو په څو ، کې شپه پلوي شول یر غل ته تیار
ستـــرګې ور وبـــریښـــوه واغونده لباس درنها

ستا دکاروان په مخ کې بیا دتیارو زور ولاړ دی
ساقي تر مورګو پـــورې ډک راوړه ګیلاس درنها

۱۲/۷/۲۰۰۰ پیښور

# غزل

کلی لرو غر لرو دستـــورو ډک اسمـــان لـــرو

شین دبو ډې ټال ګوره نـــرې نـــرې باران لـــرو

ښکلیه لاس راوا چوه تش لاسي یو بې برخې یو

روغ یو لیوني موکړه تنهی لرو ګـــریوان لـــرو

راشه او ځولی دګلابونـــو پـــکې وشیـــنده

مونږه هم خبرې درښو اوبـــو پـــه شـــان لـــرو

داسـې نه ده هم چې ګني وخت له ورکوو دیکه

زړونه لرو ، مینه کوو ، ښه ښکلی جانـــان لـــرو

رابه شي ، پاچا به شي زمونږ دملنـــګی په زور

خـــدای لرو ، رســول لرو ، وطن لرو قرآن لرو

# غزل

نه د چا اتل یـــمه او نــــه د چـــا ایـــډیـــال یـــمه

یو غریب شاعر یمه او یو غریـــب لیکـــوال یـــمه

وخت و ، چې نږدې له تندې مړوې ما ډک جام درکړ

نه به یم ساقي خو د همـــاغه جـــام کُـــلال یـــمـــه

ســرې او ښکې دبُورې هوسۍ شنو اوبو کې ګورمه

ناست یم تر چنار لاندې نــه قطـــب نه ابدال یمـــه

زړه مــې پاس دزانـــې پـــه وزر پورې تړلې دی

پـــام کـــوه ، دغشـــو واله ! زه هم د چا خیال یمه

خدای که مهربان شي ګوندې سره ګلو نه شنه کړمه

کبر نــه مـــې وســاتـــې د تورو خاورو سیال یمه

هو منم تــش لاسی یم خـــو تا به ډک له ګلـــو کړم

ګله ! مـــاتـــې ځـــانـــګې پـــه ما وتړه رومال یمه

زه داو ښکو ځا ځکې ، پرنیم ژواندو پاڼو پروت ښه یم

پـــښــې دې پـــر تـــندي نه ږدمه ، نه د زنې خال یمه

تـــار يــمه تــش تــاريـم ، په بيلتون پسې راوتی يم
تاو به دی ترغاړې مـــرغـــلرې کــــړم وصـــال يمـه
ما دزړه خيرات کړی دی موســکه به راځـــي اخــــر
چاويل چې زه ګنـې دسپيـــنې خـــولګۍ سوال يمه
جاردې چې په سپين لاس دې په تورو کاڼو وويشتم
شپـــه راغله، بلـــيـــږمه ، دســرو وينـو مشـال يمه
صبر چـــــې «کاروان» دښاپيرۍ ورغوی پرانيزي
کرښې کرښې پروت په کې دورکو نغمـو پال يـــمـه

۱۶ / ۷ / ۲۰۰۰

# غزل

سپین دتورو ، ورور ګڼمه تور دسپینـــو ورور ګڼم
دواړه مې ددواړو سترګو ســپیـــن ګڼـمه تور ګڼم

پام کوه ! دکفر په فتوی مې چې ونــه مــانـځــې
زه خو میخانه خدایږو سکــه دجــومـات خور ګڼم

وایمه ګلپاڼې دي له اور نـــه لپـــه ډکـــه کـــړم
داسې شیبې هم راشي چې سره ګلونه اور ګڼـــم

څڼې دې که شپې دي له سبا دې سپین لاسونه ډک
نن سبا خو ژوند ایله دشـنـــو بـنــګړیو شور ګڼم

وایي راته دوه جمع دوه ووایــه چــې څــو کیــږي
یــم شاعر سړی وایم ګلونــه یـــې څـــلور ګڼــم

لـــمــر چـــې زرین سپر شي اودوینو ورینګي وُري
شنه زرغـــونـــه هم مینا توري غوندې منګور ګڼم

خـرڅـــه یې ښکاري برګۍ څرمنه په بازار کـې کړه
څـــو دبرګې پړانګ اوس دزرینې هوسۍ کور ګڼم

نــن مـــې په رنـــځـــور و سترګو غلي ور کتلي دي
اوس خـــو پـــه کاروان دنـرګسي غـزلې پور ګڼم

پېښور ۵/ ۳ / ۱۹۹۸

# غزل

جنګ به يې وژلې وي ، د ستر ګو جنګ بـــه راوړي
ګورې به جنګي آسان ، د ســولې رنــګ بــه راوړي

شنه به يـــې له نال ناله په شپه اور اورکـــې شـــي
تيږو ، نه به شرنګ خيژي او مست اهنګ به راوړي

اوښکې دخوښۍ به ځي له سترګو څـپ څپانـدې
غيږ کې هره اوښــکه دزړه ګــوټې زنګ به راوړي

سره سره ګلابونه به بــارو تــو کـې راشنـه شــي
ګل به شي ، وږمې بـه شي ، نشې دبنګ به راوړي

زړه زما زيارت بـو يــــه دمينـــې د ملنـګ دی
ښکلي به رادرومي دښکلا قلــنـګ بـــه راوړي

سپين دښاپيرۍ ورغـــوی پـــرانيـــزه کـــاروانه
شعر دې په خوشبو لمبوه تور لـــونـګ به راوړي

۲ / ۷ / ۲۰۰۰

# غزل

پر ورکو لارو ګرځومه څوری د نغمو

کاروان لرم تر ټولو ښه ملګری د نغمو

آشنا په خرو ارو راوړه تارونه د رباب

ورواچوه ، ورواچوه بڅری د نغمو

خنجر د دښمن مات شو د جنګي نیلي تر نال

په شنه سهار به چیغې کړي تنځری د نغمو

ترې ایستې له ګوتمیو ډکو ګوتو ده شرنګا

ګودر کې لري ننښه مات کودری د نغمو

په غیږ کې یې ځایېږي نه ګیډۍ ګیډۍ غزل

په شرنګ چې لور ورواچوي لوګری د نغمو

بیګا څوک زمزمه په خوله پیلوځي وه په لاس

سهار پر ځانګه ناست و سور وزری د نغمو

را پا څوه له څو ، نه د سندرو سمندر

کاروان په وچکالۍ کې تندغری د نغمو

۲۰۰۰ / ۷ / ۳۰ پېښور

# غزل

دزاره چاودي ناتر سره ارمان رنګ لرې ته
ګومان حرام دی ، په ایمان دایمان رنګ لری ته

باران باران نظر خو ځکه ورومه پرتا
زما دغرونو ، ددرو ، ددامان رنګ لرې ته

ملا لې سترګې دې دموسکو آیا تونو چینې
لکه ښکه دطا ووس دقرآن رنګ لرې ته

لکه دې زیړې زرغونې شوې رانیوای دې نه شم
څه شوخ دلمر ، مهین دنرم باران رنګ لرې ته

زمونږ دصبر پر کشتیو دې غو غا راوسته
شین سمندر یې آشنا څه دطوفان رنګ لرې ته

په پښتو ژبه چې خوږې خوږې خبرې کوې
ټپه ټپه شې دغزل درُومان رنګ لرې ته

دشپې له ستورو یې دروا خلې تر نرګسه رسې
داسې په پټه په اوبو کې روان رنګ لرې ته

دسهار خوب یې که دنیمې شپې غزل یې زما
زه ستا په رنګ رنګ یم کنه دکاروان رنګ لرې ته؟

# غزل

مړه شي مړه شي دتکــرار له درده توري

نه مري نه مري دخمـــار لــه درده توري

ددوو سترګو دبيمار لـــه درده تـــوري

زاره چاود لکه انـــار لـــــه درده تـــوري

داحمد دشهيـــد غـــاښ له درده ډک دی

داچې ډېـــر دي بـــې کرار له درده توري

قلقلې کـــوي دخيـــال په شنه آسمان کې

لکه زانــې په کـــتـــار لـــه درده تـــوري

له سلګو يې ډکوه چـــې سندريځ شـــــي

تش خو مه شه د خپل يار له درده تـــوري

بيا مې خيال ته شرنګيدلي اوښان راغلل

بيا به پرې کاندي مهـــار لـــه درده تـوري

بس خودا چې دبلـــبـــل سکنـــي ورونــــه

ستا کاروانه سندرمـــار لـه درده تـــوري

۱۳۷۷

# غزل

یو ګام کیږدي بــل ګـــام واخلي روان په ترنـم
او شپه د سپوږمۍ شپــه ده ځي کاروان په تــرنـم

ودان په ترنم دي کړ خالـــــقـــــه دا جـــهـــان
چې کله یې وخت راشي کړه یې وران په ترنــــم

کوترې خولې په خولې شه په غومبراو په ګــډا
په شغ دي ځي په غرونو کې بازان پـــه تـــرنـم

ګلونه به د سوبې وړي په غاړو کـــې امیـــل
راځي به دجانان جنګي آسان پـــه تــرنـــم

بادونه دي چې ځاځکي سره ولـــي یو پربل
را وُري دي راوُري دي باران پـــــه تـــرنـم

غونډۍ په ګلو پټې دي درې درې دی غـــــر
ګلپاڼې په پنجو کې وړي مرغان په ترنـــــم

د مینې په لمانځه کې به جانان شي راحضـور
د بر کلي بـــــلا ل کـــــوي اذان په تــرنــــم

راوړي به ښـــا پیـــرۍ درتــه ګلونه دالهام
بس بار به دې کاروانه وي اوښـــان پــه تــرنم

# غزل

مه د رومه یو ازې پر دې لاره غــر خــی بــو دی

ها غلته دلارې تر څنګ پړانګ نیولـی څــو دی

دا الشــې لشــې بــا نــه دې بــلې خــو اته یو سه

دلته په دې کلي کې د شنــو غنــمــو لــو دی

برید کا پرتا ، لاس کې دې موږک دکمپیو تر دی

څګ غو ړو نه ګر ځوه د برګــې پیشــو میــو دی

دا دژوند انه لوبه ګټــي او کــه یــې بــا یــلــي

ګوره لیونې میــن د ښــکلیــو پــر پــلو دی

یو به دې سم و ایي به سپو ږمۍ اخیستې او ر دی

شپه شوه سور کی آس مې و د رولې پر کندو دی

ګو ړې او شکــرې دې سنــد رو تــه ورګـــډې

ښکارې چې کاروانه دهندو دو کان دې ګرو دی

۲۰۰ / ۱ / ۳ پیښور

# غزل

نه مې ساقي ليدلی نــــه مــې ترينــه جــام اخيستـــی
ما خو د خپل صنم د ســرو ستــرګــو ســلام اخيستـــی

څه ټُرابان بادونه بيا پـه بـورږ بو کــې کـې راغــلـــل
بيـــده بـــهـــرامـــه بيـــا يـــې شال د ګل مکې اخيستی

بې مينې وخت پرمينـــې داســې قـــد غـــن ولـــګاوه
مجنون سنګسار شي چې يې تش وي په خوله لام اخيستی

خدايه ګردي کاڼي په لاس را پـــر تـــنـــدي يـــې ولـــم
څوک مې سهار په ولحه وږي چامې مـاښـام اخيستـــی

هسې نه وي نيسي ښکار د ښامار پـــاتـــې نـــه شـــي
د زړه په څرخ پسـې مــې چـــا د څـنـو دام اخيستـــی

خـــدای خـــودې نـــه کـــوي ، زمـا د شاعر زړه خو چوي
چـــې بغـــدادی کـــوتـــر وي تورکارغه له بام اخيستی

جانان خبر دی د کابـــل د دردلـــه رنـــګـــه ګلـــرنـــګ
خلک دې وايي چې غـــزل يـــې له باګـــرام اخستـــی

دا چې پرانزي نن دې خيـــال د ښـــا پيـــريـــو تـــنـــې
کاروان د ښکلي اوښ له اوښــکونـــه الهـــام اخيستـــی

# غزل

سهاره ويښ يم بيده نه يم که رابولې مرغۍ
هغه د خدای په غزل مستې سندر بولې مرغۍ

کاشکې چې ستا سو په انګړ کې يوه شنه ونه شم
لاندې ترې ټال وي ستا ، په سرکې يې را ټولې مرغۍ

دزړه پر کښت باندې ير غل راوړي فطرت د نغمو
دا يې فطرت دی چې غنم خوري اويا شولې مرغۍ

په پنجرو کې چې نغمې د آزادۍ غږوي
ستا د شاعر زړګي کاروانه دي همځولې مرغۍ

# غزل

شعر څیله مست اوښ دی خپل څښتن ته نه دی رام
یو سمندر شور دی ذره نه لري ارام

ویښو له مستۍ نه کړي شپه یې دي خوړلي
ده د خپل څښتن د خیال په شوري کې بادام

منډې وهي منډې د ښکلا په غرو رغو کې
کله تري په لاره پر یوځي د روندبار د پیغام

ما ته یې نتهۍ د غلامۍ پري یې مهار دی
هیڅ د اوښانه په خوښه نه اخلي یو ګام

یو ځل که د خپلې خوښې اوښې باندې چوشو
خدایږو په ډانګو نو که تري پاڅوئ بدنام

ناز به باندې نه کوي خو نیاز ورسره بویه
شعر آغا باداری او شاعري یې دی غلام

هیڅ یې پیدا نه کړه دی دورکې مستۍ تږی
سترګې یې ګډېږي لکه ډک د میو جام

زر شعرونه شنه شي د شاعر له یوه زړه نه
زر کوتري والوځوي یو شاهین له بام

# غزل

ګېدۍ څڼې مو ډل او یا قربان ته واچوئ
وریښمینې لونګۍ ګرد سره میدان ته واچوئ

ترخې خبرې پرېږدئ کړي خوږې خبرې خوند
شکر د شنو طوطیانو شکردان ته واچوئ

که ګل نشته، امیل نشته، لاسونه خو مو شته
په مینه کې یې غاړې د جانان ته واچوئ

ښېرا راته دعا شوه د یوه ښکلي کلیوال
د ښار ښکلیو وېډال د غره کاروان واچوئ

# سوال

ستا په لاس کې ټولې لارې
له ماور کې ټولې لارې
دد نیا له سترګو پټه
یوه لاره ماته راکړه
چې د رګ په شان درزیږي
چې د زړه تل ته کوزیږي

# غزل

چــې تير کړی دې پــرون دلــري وار دی
مستــانه راد رومــه نــن دبــري وار دی

ګورئ ټول به پښتانه ډول تــه ګـډ يــږي
مــو نــــږه تيــر پــه بد رګه ددري وار دی

په چغار کې بــلبــلي دردونـــه نغـــاړه
شنه طو طا ! راغلې ســـتا شـــکري وار دی

خولګۍ راکړه ما لونـــګ ژوولـــي دينه
ستـــا پـــه څنو کې زمـــا دببــري وار دی

ما دخيال په قاف کې ډيرې شپې رڼې کړې
پـري واره بـــه راځـــي دپـــري وار دی

خورې رمــې بـــه دغـــزل دغـــزالانـــو
دښـکلا ددا ســـې وږي زمـــري وار دی

کاروان څه په شرنګيدلي قـــدم راغـــی
ښايي نن يـې دنغـــمـــو د وري وار دی

۲۰۰۰ / ۳ / ۲۳ پيښور

# دعا

ډوډۍ دې مولا ګرمه لره یــخ ګړي دې ډیــر شـــه
شو دې مستې تر شاتو پورې زیږ غوړي دې ډیر شه
داجم ګودر په ښکلیو پاک لمنو پیغلــو ډک شـــه
تورزن زلمي لښکر لښکر دبخت سرې دې ډیر شه
اصیل اصیل آسونه دې ګلـــې ګلــې روان شـــه
چې ستن ترې خطا کیږي نه تو پک بوړې ډیرشــه
غنم ، جوار ، اوربشې ، لونګۍ مهینې وریــجې
باغونه ، ځنګلونه ، ګلان سره زیړي دې ډیر شــه
نغري باندې دې باندې مه شـــه هیڅ دغم کتـــوه
چې خنډ شي میر ځمن ته دمنزل ځوړي دې ډیر شه
دچم یوې نجلۍ ته «کاروان» داسې دعـــا وکـــړه
پریمانې دې چمبې چمبې اوشنه بنګړي دې ډیر شــه

۲۰۰۰ / ۱ / ۲۰ پیښور

# غزل

هغه له شور نه ډکې ګوتې نرۍ نه شته نه شته
چمبې چمبې که شته د چم جینکۍ نه شته نه شته

شوې د بلبل د نغمو تاندې چینې وچې وچې
پرخې لمرونو دي خوړلي غوټۍ نه شته نه شته

د پړانګ پنجه راوېښوي، کبلي د ژوند له خوبه
په تور ځنګل کې هم زرینه هوسۍ نه شته نه شته

له خیالي لاس نه مې د کب غوندې نغمه ښوییږي
شپې رڼوم خو د الهام ښاپیرۍ نه شته نه شته

د زړګي ننبه تور توپک ته په ورغوي کې وړم
خو بیا مې هم په برخه سپینه خولګۍ نه شته نه شته

د ښو ستنې راوړه او ښکې زما تڼک وهه پرې
ګریوان مې ګوره په کې نیمه تڼۍ نه شته نه شته

شوبلو نیولې د کیږدیو ځای په دښتو کې دی
تر شیرازۍ کوترو سپینې کوچۍ نه شته نه شته

سترې اوښبه یم خوب کې وینم دوریښمو کاروان
سرته سرګړي کړم سرو یږدۍ شړۍ نه شته نه شته

# غزل

هغه افغان ګل یې چې ګاچین به مسلـــمـــان کــــړې
هند به مسلمان کاندې او چین به مسـلمـــان کــــړې

ستـــا خـــوږې خبـــرې کـــرامـــات لـــري شـــکرې
جار د پشمه ښکلي نـــا زنیـــن بـــه مسلمـــان کــــړي

توري برګې سترګې دې د ستـــورو ډ کــــې شپې دي
نازدې که لږ وینس شي تور او سپین به مسلمان کړي

زرکــــې او کـــوتـــرې خـــو دهســـې هـــم مـــلګرې
بـــاز بـــه دې غـــلام شي او شاهین به مسلمان شي

تـــور کمـــر د تـــور کفـــر به طُـــور غـــوندې رڼا کړې
شنه لمبه شـــه وچ کـــه وي را شیـــن په مسلمان کړي

ښـــه لـــه درده وژاړه چـــې او ښکې دې الماس شي
تـــاو تر سپینـــو غاړو لونګین به مسلمـــان کـــړې

ګوري به کاروان د مـــرید انو بـــه دې مـــل شــــي
ډیر له شعر منکر ،ملحد ، بې دین به مسلمان شي

۱۹۹۸ / ۱۲ /۷ پیښور

# غزل

وچکالي راغله او برنګه شته که نشته

مرو ، دژوند په شانې دنګه شته که نشته

چې يې لفظ و بادام زړی ، خندا نقل

هغه شوخه ، هغه شنګه شته که نه شته

باد شاهي دزړه مې بيا بې شهنشاه شوه

تاسې وګورئ ! ملنګه شته که نشته

پر ټټر لاره دماتو مردکيو

کومه لاره تر لونګه شته که نه شته

چې ترسولې سپينه خوله په خندا راکړي

په ژړا سترې له جنګه شته که نشته

چې کاروان يې د سندرو ښا پيرۍ کړي

څوک تور سترګې غنم رنګه شته که نه شته

۱۹۹۸ پېښور

# غزل

بت جوړوم بت ماتوم یاره دا هنر لرم
زه د زړه په کورکې له خلیل سره آزر لرم

کله د چندڼ ونه شم کله هم ښامار شمه
شنه طوطیان که راشي بې شکر نه یم شکر لرم

د نګو د نګو څوکو ته جنډې جنډې د سوبې وړم
ګوښې پاتې نه یمه د سرو ګلو لښکر لرم

سین د مړو اوبو یم خو چې سپین مخونه مینځمه
شور شمه غوغا شم ډکې لپې د ګوهر لرم

سپینه خولګۍ را سپینه کوتره سپینه سوله ده
شین د زړه شهباز په جنګ کې ژوبل او ژور لرم

سپین د ستورو مېخ مېخ مې د شپې پر تا بوت بیا وهي
سپین کفن سهار لرم، زیړې شهید دلمر لرم

سـوي پـتنـگان مـې دلمبـو دوړو ، وړي دي

پوخ په هديرو کـې مـې دبـلو شمعـو کـر لـرم

فـصـل دنـکـريزو مـې داوسپـنې ږلـۍ وهي

غـوځ دخپـل مـاشـوم ارمـان لاسونه په خنجر لرم

مـا ورته کـاروان داوښکو پرخې ، پرخې ، پرخې کړ

ګل بـه شـم جانان مـې دګلـونـو پيغمبـر لـرم

# غزل

منصور چې څښې څنډوهي د ستار وغــور ځــوي

په یوه چیغه به ســل زره کــفــار وغــور ځــوي

سیلۍ د مینې راغلې بــړ بــو کـې د مینــې هــم

له شیخ نه به د خامو خښتو ښــار وغــور ځــوي

غــم مــه کــوه ژونــدۍ پــه وي ټپې د ملالۍ

شنــې ټــکې که آسمان پر یکه زار وغور ځوي

دا ستر انځــور ګــر وګـورئ کانې کوي که نه ؟

په ســرو مــلالو سترګو کې خمار وغور ځوي

درند تږي نظـر پر واګــو پــام لــره لــږ ډیــر

خولې د سپین ساقي پر سره رخسار وغور ځوي

« کاروانه » غزل بوله که دې توري شول تمـام

له غاړو نه به نجونې درته هـــار وغــور ځــوي

# غزل

درې واړه پر ما ګران دي اول یار زما د کلي
چنار زما د کلي او کوکنار زما د کلي

پسر یې لرې ټُوري دهُما دوزر سیوري
ټکری زما د کلي او دستار زما د کلي

حجرې مو له جرګو له مرکو نه تشې مه شه
ګودر ته جونې درومي په کتار زما د کلي

په ډول په ګډا ګانو مرور یاران پخلا کړئ
رباب زما د کلي او ستار زما د کلي

ها پورې د غره سرته ځنځیر خپور ګلونه خیژي
شاید چې په ولجه به شي بهار زما د کلي

شپونکی زما د کلي بو یه کشر اسرافیل دی
دنیا ته به محشر ځي وار په وار زما د کلي

دریاب کې د سندرو به څپې څپې شي
ټپې ټپې ټپې په یکه زار زما د کلي

ترې ستوری په نیزه کې د غزل کاروانه راوړه
سپوږمۍ به خا مخا درښیي لار زما کلي

# غزل

خدای په کې ښکاري له هنداري جوړدي دالاسونه
لــه خپــلو اوښکونه یـــې ډک دي ددعا لاسونه

څـــه کشمالی شمـــال یې ستا د مستو څڼو راوړ
نرګس له شرمه پـــه اوبــــو کـــې وهي بیا لاسونه

ظالم پاچا کړی اعلان دی چې بـــس ټـول غوڅوي
که بیا چمبوته غځیدلي وو د چـــا لاســـونـــه

د اوبو ترې نــه یـــم بلې تــنـــدې واخـیـستمه
ښکاري اوبــوکـــــې سپینې تورې د لیلا لاسونه

د نښتر څڼو کې د شپـــې، زرینـــــې ږمنځې وهي
سپوږمۍ په پوره واخلي له ستـــــورو درنا لاسونه

تش لاس به ولې یم کاروان غزل پـــــه لاس کې لرم
ما هم د چاپــــه مخ کې ښکل دي د مـــولا لاسونه

۱۹۹۸ / ۱۷/۶ د نثار صیب دمه ځاي

# غزل

منم په هرڅه کــــې احتیاط منمه

خویو په مینــــــه کې افراط منمه

ځم له مجنون ســره مسلات کومه

نه د سقراط نــــــه د بُقراط منمه

تا سره هره جامـــه ښه ښکاریږي

دا هـــنر کـــله د خیــــاط منمه

کاروان که ومري سکې هم نه لري

خوږې سندرې یې په سقاط منمه

# غزل

شپې چې زلفې نه شـوې مخ د سپین سهار خطاکا
تـــور کفـــار خـــو لاره د مکې د ښار خطاکا

غشې په برم ورکړه چې ښکاري ته موسکه نه شې
تاودی له کـــوتـــرې نـــه چې سر د مار خطاکا

شیخ که د رباب په شرنـــګ کې ښکلې آشنا ولید
ډیری به یې ګـــوتـــې د تسبو لـــه تار خطاکه

خوب وینمه لمر پلې په شنو دروکـــې ګـــرځي
لال د بدخشان به له خولې شین ښامار خطـــاکـــا

ستا د رنجو اوښـــکې یـــې لفظو نه د غـــزل دي
ستا شاعر طوطي شو شکري چـــغار خـــطاکـــا

لړمه شه تور سترګې دا د سپینو ورځو ستـــوري
ډېر شه ډېوه مخې چې له شپونه وار خـــطا کـــــا

راولـــه کـــاروان ګـــلونـــه راولـه سپرلیه !
پرېږده چې له مستو لارویـــــو لار خطـــــاکـــا

# غزل

یـــو ځو ښکلي رندان به میخانې تـــه راولو
لښـــکر ګلان به للمې زمانې تـــه راولـــو
مـــا زړه ستا د وعدو د لاسه شین راوړی دی
ستا سپینه خولګکۍ به بهـــانې ته راولـــو
شپه راغله ځئ وزرې د رڼا وروا غـــونـــدو
ډیوه به وزر سـوې پروانـــې تـــه راولـــو
یاد یږي مې نن بیا د نیزه بازو نجونو جنګ
د چا ملالې سترګې یارانـــې تـــه راولـــو
دیوان به راګوزار کړو د تخـت له سلېمـــان
ربښتینې ښاپېرۍ به افـسانـــې تـــه راولو
جنـــډې د سخي جان به مې جانان ورپـــوي
ســـرتېـــري ملنـــګان بـــه نذرانې ته راولو
چـــې پـــرې کـــړي د مغُـــلو د بتانو کپرۍ
پښتـــون د ازرزوی بـــه بـتـــخانې ته راولو
د غرونو ، د ځنګلونو دی ګډا تــــه شوی زړه
کاروان "به یوې مســـتې ترانـــې تـــه راولو"

# غزل

د بدرنګۍ له سیند اوباسو د سندرو بېـــړۍ
الله لاهو مه کړې د ښکلو مساپرو بېـــــړۍ
د څو کیږدیو او یو څو دانو خورمـــا په بدل
لاړې عربو ته د لمنځو، د نـــښترو بېـــــړۍ
مونږ ته رادرومي الوتکې له مارانــــو ډکې
له مونږ نه درومي د نرګسو نیلوفـــرو بېـــړۍ
د آشنا سترګې شوې د تورو ګربتانو ځـــالې
زمونږ لېمې د سپینو اوښکو د کوترو بېـــړۍ
مونږ د تیارو د جزیرو په غېږ کې ژوند تېروو
له مونږ نه وړې ده رڼـــا د ستمـــګرو بېـــــړۍ
مونږ ته زخمونه د ځیګر د سترګو اوښکې پاتې
پاریس ته ځي د زمرودو د لاجـــورو بېـــــړۍ
مونږ د شهیدي خور ټکری کړ د جونګړې پرده
لوټمارو بار دي د رخامو د مـــرمـــرو بېـــړۍ
په هر غزل کې یې رنګونه جادوګر جادوګـــر
کاروان ولجه کړله د خیال د جادوګرو بېـــړۍ

# غزل

زمونږ د اوښکو مرغلرې ګــــونــــدې آب نــــه لري
د وخت خندا نه زده که ســـوال تـــه مو ځواب نه لري؟

پر ما ين ختـــلې دُرخـــــو ورکه بسو ګې وديږي
د آدم لاس پـــــه جنګ کې پزې تاب د رباب نه لري

اوس مونږ په زړونو کې سجدې کوو لمونځونه لري
جومات مو ويشتى الوتکو او محراب نــــه لــــري

د جنګ چينجو يې د سرتېولې پاڼې وخــــوړلــــې
په خافظه کې مو تاريخ د سولې بــــاب نـــه لــري

پر مونږ راوُري د پــــولادو او داور لــــه اسمــــان
ګنې شينکې آسمــــان دا وسپنــــې شهــاب نه لري

چې د نظر پر سکو ووهې ټـــاپـــې د مــــوســـکا
هى د دين پر با چهى شه هيـــخ ضـــراب نـــه لري

د رستم زړه غواړي کاروانه شعر څه ټـوکې نــــه دي
پردې سرکشه رخش دې پام لره رکـــاب نـــه لــري

۱۳۷۶ د لږم مياشت پيښور

# غزل

وګوره اوښبه راوړی بار د ګــــلابـــــونــــو دب

خوب وینم، بلبله وایې وار د ګـــلا بـــــونــــو دی

غرونو ته سوما ختلي کـــلي تــــه نــــر ګـــس روان

بس باچا ګلاب دی او ټول ښار د ګـــلابـــونـــو دی

تللی هغه وخت چې تار دیم یې و تر څـــانـــګو تـــاو

وایي له ژوندون سره اوس تـــــار د ګــــلابـــونو دی

راغله بلبلکه پر هندارو یـــــې وزر مــــوښـــل

ځان به په کې ګوري پرې غبــار د ګـــلابـــونـــو دی

خواکې یې راشین شو تر کړې یې څانګې څانګې تاو

دار کــــه خـــونــــړی و خو نن یار د ګلابونو دی

دواړه په لانجه وو خـــو شاعر یې شو تر منځه برید

شپه د سپینو ستورو شــــو د سهار دګلابونو دی

وګورئ کاروان ته له نغمو نـــــه یې وږمې راغلې

داسړی شاعر نه دي عطار د ګـلابــــونـــــو دی

۱۵ / ۱۰ / ۲۰۰۰ پیښور